# د سواتنامې سريزه

(۱) سوات

د هندوكش د جګو او په واورو پټو څوكو او سردرو سلسله د افغانستان په زړه كي تېره سوې او د شمال ختيځ پلو ته د پښتونخوا د شمالي غرونو هغه سيمي او لوړي ژوري جوړوي، چي د قره قروم او دردستان له ښكلو درو سره نښلي او له دغو غرو څخه څپانده سيندونه، لكه : كابل، كونړ، پنج كوړه، اباسين، پنجشېر، غوربند او نور راوي، چي په ختيځه شمالي څنډه كي د پښتونخوا شمالي بريد ته د پكهلۍ د سيمي د يوه اړخ د كاغان له درې څخه د كونار روڼ او څپاند سيند راوزي او دا ګرده ژوند بخښونكي رودونه، نه يوازي د پښتونخوا شمالي برخي بلكي د پنجاب سيمي هم خړوبوي.

په دغو بهاندو او غورځندو سيندونو كي يو سوات نومېږي، چي د دردستان او بلور له لوړو سيمو څخه رابهيږي، او له اشوكالامه بيا تر هغه ځايه چي په نسته كي د كابل د سيند سره نښلي، اوږدوالى يې (٦٠) ميلو ته رسي. دا يوه داسي ښكلې او د ليدو وړ سيمه ده چي د شمالي پښتونخوا په غرنيو برخو كي يې ښكلا او ځلا هيڅوك نه سي هېرولاى.

د سوات نوم د تاريخ له پلوه هم خورا لرغونى دى. كله چي آريايي قومونه له باختره او د هندوكش له شنو او ښايستو لمنو څخه درې زره كاله دمخه، ختيځ پلو ته وخوځېدل، نو د دوى د لرغوني كتاب ريګويد د سيندونو په سندرو كي كله چي د كابل، كورم، ګومل، اباسين نومونه ستايل كيږي د سوات رود د سويتي Sueti په نامه يادېږي او په يوه بله سندره كي هم دغه سيند سواستو Souvastu بلل سوى دى[1] او د دغو دواړو يادونو څخه دا ښه ښكاري چي د آريايانو د لېږد په وخت كي دغه سمسوره سيمه ودانه وه او دغو لېږدېدونكو خلكو پېژندله او پكښي ميشته سوي وو.

***

د ريګويد تر عصر را وروسته چي اريايي قومونه د هند په شمالي خوا كي خپاره او ودان سول د سنسكريت د ژبي لوى پوهاند او ګرامر ليكونكى پاڼ ني PANINI چي د (۳۵۰ ق.م) شاوخوا كي د اټك پر غاړه اوسېده، دى هم وايي چي د سواستو Suvastu رود د خپله معاونه سره GAURI (پنج كوره) د ګندهارا په شمالي خوا كي له اډهيانه UDDIYANA څخه رابهيږي. چي د پنډو كمبله PANDU-KAMBALA (= پنډ + كمبله) په نامه يې شړۍ مشهوري وې [۲].

د هند يو مشهور پوهاند اګر والا ليكي چي :

د پاڼي ني په وختو كي دغه دواړه رودونه سوات او پنج كوره مشهور وو. چي د ګندهارا په لوړه څنډه اډيانه كي بهېدل [۳]. د سوات دغه بهاند او فياض رودو په مهابهارت كي د بهيشمه BHISHMA په نامه ياد سوى و (فصل ۹) چي آريان ARRIAN يوناني مؤرخ د (۱۷۵ م) په شاوخوا كي سواستوس SUASTOS بللى دى، چي د بودايي ليكوالو په قول دا د مملكت يوه سيمه وه او لرغونى پايتخت يې د ارشته پوره ARISHTHA-PURA په نامه د سوات اوسنى چاربا غ و [٤].

د سواد جغرافي موقعيت داسي و چي د پښتونخوا د شمالي څنډې د غرونو په لمنو كي د هند لويو لارو ته نژدې په يوه زرغونه او ډېره ښكلې سيمه كي پروت و، او آريايي خلكو د ريګويد د زمانې را په دې خوا د دغو

غرو او رودو سره مينه درلوده، او پکښې ميشته کېدل به. دغه خلك چې د خپلو اجتماعي پړاوونو تېرېدلو په سلسله کې له کوچې ژونده زراعتي او کليوالي ژوان ته رسېدل، نو د دوی له پاره د سوات غرونه او سمسوري سيمې تر ګردو نورو ځايو خورا ښه هوساتون ګڼل کېده، د کر پټې اورشو پراخه وه، اوبه او هوا يې هم خورا په زړه پوري او د سهلو وړ وه، دا لا څه کوې چې د جهانګيرانو او يرغلګرانو له څپو او آزاره به لا هم خوندي وو.

د (۳۲٦ ق . م) کال ژمی و چې اسکندر مقدوني فاتح د کونړ په سيمو کې د اسپيزي (يوسفزيو) سره وجنګېد او له دغه ځايه پر باجوړ او چکدره ور تېر سو، سوات يې تر مساګې پوري ونيو. وروسته د اټك له لاري پر اباسين ور واووښت او ټکسيلا يې ونيوله. د سکندر برم پر دې سيمو باندې تشه يو تېرېدونکې ورا وه. خو تر ده وروسته د ده پاته سوي جنرالان په باختر او پښتونخوا کې پېړۍ پېړۍ د اقتدار ملوني په لاس کې حکمرانان وو او له ختيځه پلوه د هند د موريا کورنۍ غښتلې پاچهي د چندراګوپتا په مخکې جوړه سوه (۳۲٤ ق.م) او د هندي کلتور اغيزې يې په پښتونخوا کې د يونانيو رشو او دودونو سره ګډې کړې، چې وروسته په (۲٦۰ ق.م) مهاراجه اشوکا د بودا دين هم ورسره خپور کړ او په دې تهذيبي اختلاط کې د سوات سيمې د ګريکو بوديك مدنيت اغېزې مومې او بيا چې د ميلادي کلونو په پيل کې د کوشاني قومونو اقتدار او مدنيت خپرېده او د کنيشکا د ژمي پايتخت پېښور او سوات ته ورځرمه و، نو د کوشاني کلتور ډېر آثار تر اوسه لا هم د سوات له هره ګوټه څخه راوزي.

***

د ميلادي لومړيو درو څلورو پېړيو په ترڅ کې د سوات سيمه د بودايي کلتور د سمسورتابه او غوړېدلو ځای و او کله چې به له نورو ليرو هيوادو څخه بودايي بمبڼ (راهبان) د زيارت له پاره راتلل، نو به دوی د سوات بودايي مقدس مقامات هرو مرو ليدل. لکه چې درې تنه چيني بودايي راهبان په لاندې ډول سوات ته راغلي او پخپلو يون ليکونو (سفرنامو) کې يې د سوات يادوني داسې کړي دي :

په (٤۰۰م) کال د چين بودايي زاير فاهيان له چانګان څخه د بودايي مقدسو سيمو د زيارت او د ديني نايابو کتابو د ټولوني له پاره په يون پيل وکړ او تر (۱٤) کالو وروسته په (٤۱٤ م) کال نانکن ته ورستون سو.

فاهيان له کاشغره د اباسين سيمو او ګندهارا ته راغی. بنون، هډه، جلال آباد او پېښور يې تر سواته وليدل، دی وايي چې : اوچينګ (اوديانه) د هند د شمالي برخي پيل دی او ټول خلك د منځني هند په ژبه ږغيږي. جامې او کړه وړه يې هم د منځني هند خلکو ته ورته دي، د بودا دين دلته ډېره وده کړې ده او د راهبانو د هستوګني له پاره ډېري سنګهارامې سته، چې شمېر يې پنځو سوو ته رسيږي او د کوچني يون (هينايانه) په مذهب اړه لري او خلك وايي چې بودا د خپلي پښې يو پل (منډ) دلته پرښوولی و. چې د ليدونکي د عقيدې سره سم به کله اوږد او کله لنډېده. دلته يوه جګه او خورا ښويه تيږه هم وه. چې بودا خپلې جامې پر غوړولې وې، او په هم دغه سو ــ هو ــ تو کې بودا د کوتري د نجات له پاره خپله يوه ټوټه غوښه باز ته ورکړې وه او خلکو پر دغه ځای باندې يوه زرنګاره سټوپه جوړه کړې وه(٥).

بل چيني زاير چې په (٥۱۷ م) کال يې دې سيمو ته سفر وکړ سونګ ين دی. دی وايي چې د اوديانه او بلور په درو کې يې د اوسپني درانه او غټ ځنځيران د پلونو په توګه استعمالول او د دې ځای حکمران غوښې نه خوري. د بوټو غذايي خوړه، د بودا ټينګ دروري و.

سونګ ين د سواد بودايي متبرکات يو يو ښيي او د بودا د هغو پلونو (منډونو) زيارت ته ځي چې دمخه يې د فاهيان په سفرنامه کې ذکر سوی و. هر ځای معابد، بودتونونه او د بمبڼو ټاټوبي ويني او په سوات کې د بودايي دنيا عجايب بيانوي (٦).

تر سونګ _ ین یوه پېړۍ راوروسته د چین یو بل بودايي مسافر هیون _ څنګ دی. چي په (٦٢٩م) کال د لوېدیځو هیوادونو په لیدنه کتنه راووت او په (٦٤٥) کال بیرته خپل وطن ته ستون سو. ده د بودايي غټ یون (مهایانه) (١٢٤) ټوکه کتابونه په دې سفر کي میندلي وو چي پر (٢٢) آسونو یې چین ته ورسول او خپل یادداښتونه یې په یوه کتاب کي ولیکل چي سي _ یو _ کي نومېږي، یعني "د لوېدیځي نړۍ یادوني".

هیون _ څنګ د (٦٣١ م) (٩ هـ) د جنوري په لومړۍ ورځ په اودیانه کي و او له دې ځایه چي اوس یې مردان بولي سواستو Su-FA-SA-TO ته د مارچ په اوله ورځ ورسېد او بیا په اپرېل (٦٣١ م) (١٠ هـ) کي تکسیلا ته ولاړ.

د هیون _ څنګ د سفر وخت په پښتونخوا کي هغه زمانه ده چي د اسلام د دین رڼا لا دې سیمو ته نه وه را رسېدلې. د هجرت نهم کال و او دلته د بودا د دین کوچني او غټ مذهب خلکو مانه. ګندهارا او لودیانه (مردان) او سواستو (سوات) د پودايي دین مراکز وو او په سوو سوو بودتونونه د بودايي راهبانو او ستانو څخه ډك وو.

هیون _ څنګ چي کاپیسا ته راغی د دې ځای حکمران یو کشتیه (له لښکري ډلي) څخه ډېر هوښیار سړی و، د ده د هیواد قلمرو (١٢٠٠) میله و، پر لسو نورو هیوادو یې حکم جاري و هر کال به یې د بودا یوه سیمیله (١٨) فټه جګه مجسمه جوړوله او د بودا مذهبي لویه جرګه (موکشامها پریشاد) به یې هم سره راغونډوله. سل بودتونونه په شپږو زرو بمبڼو ډك وو. تر پېښوره او اټکه یې حکم چلېده. هیون څنګ د سوات د سیند پر دواړو څنډو یو زر او څلور سوه سنګهارامې ښیي، چي د ده په وخت کي ځیني وراني سوي وې او پخوا اتل زره راهبان پکښې اوسېدل. دې سیمي څلور پنځه ټینګ ښارونه لرل او د حکمران ناستون یې منګلالا نومېده، چي اوسنۍ مینګوره به وي. د دې ښار شمال ختیځي خوا ته د اپالاناګا ډنډ د سوات د سیند سرچینه وه او بیا نو لوېدیزي خوا ته د بودا د پله (منډ) زیارتګاه او د چینې د وچولو تیزه او د مهاوانا بودتون او د بودا د لرغونو ژوندونونو متعدد یادګارونه او ستوپې د هیون _ څنګ په سفرنامه کي یاد سوي دي. چي د سیمي د خلکو عقیدوي لوېدلی حالت او په خرافاتو کي غوټې وهل ښه څرګندوي [٧].

د هیوند _ څنګ په قول سوات (٦٠٠ لی) (١٠٠ میله) له پېښوره شمال ته پروت و چي اوجنګ _ اودیانه یې باله او دا د سنسکریت کلمه اوجانه ده چي معنا یې لوی باغ یا خورا زرغونه او سرسبزه سیمه ده او چاپېر یې (٥٠٠٠ لي) (٨٣٣ میله) و. چي تر سوات رود ګرده لاندي سیمي پکښې شمېرلي کېږي، لکه : پنج کوره، باجوړ، سوات، بونیر او په همدغه سیمه کي د بودا یوه د لرګي غټه مجسمه (١٠٠ فټه) جګه ولاړه وه چي د اشوکا د سلطنت په (٢٤٣ ق.م) کي درول سوې وه [٨].

***

تر اسلام دمخه د سوات شهرت او وداني او فرهنګ په لوړ ډول د هندي او نورو مقامي توکو څخه یو ګډ او مخلوط ژواك و، چي د پښتونخوا تېر د تاریخ او فرهنګ کړه وړه کټ مټ دغسي وو. دلته د کوشان له کورنیو څخه مختلفي ډلي او له یفتلیانو څخه پاته کورنۍ د پښتونخوا په ګوټ ګوټ کي د حکمران په توګه پاتي وې. لکه چي د کابلشاهانو کورنۍ له کابله تر اباسین پوري د اقتدار خاونده وه او شمالاً هم د دوی اقتدار تر سواته خپور و او د دې مقصد له پاره اوس یو ژوندی سند هم سته، ځکه چي د سوات په بریکوټ کي یو ډبرلیك په سنسکریت او سره داناګري خط په (١٨٩٧م) پیدا سو، چي اوس د لاهور په موزیم کي دی. پر دې ډبره داسي کښلي دي :

"د ستر حکمدار او ترګردو شاهانو غټ، لوی پاچا سري جیه پاله د یوه په پاچهي کي" [٩].

دغه جيه پاله (جيپال) هغه کابلشاه دی چي د پلار نوم يې بهيم ديوه و او د (۳۰۰ هـ) په شاوخوا کي يې پاچهي کوله. جيه پاله په (۳٤۹ هـ = ۹٦۰ م) پاچا سو او د العتبي په قول په (۳۹۳ق) يې خپل ځان وسوائه [۱۰] دغي کورنۍ د امير سبکتگين د غزني د پاچا سره ډغري ووهلې او کله چي له کابله بې کوره سو نو يې بيا د اباسين پر غاړه په ويهند (هنډ) کي دوهم پايتخت جوړ کړ او له لغمانه تر پکهلۍ پوري د سوات په شمول د دوی مملکت و [۱۱]، خو د سلطان محمود يرغلونو دوی نونځه کړه ځو چي د دې کورنۍ پنځم پاچا بهيمه پاله د البيروني په قول په (٤۱۸ق = ۱۰۲٦م) ووژل سو [۱۲].

دا خبره هم د هېرولو نه ده چي د اسلامي عصر په شروع کي يو کابلشاه (يا وهمن مردان شاه) له زاوله تر اباسينده (حدود ٦۰۰م) حکومت لاره، چي پر سکه يې : "بگ خوتای وهمن مردان شاه" په پهلوي رسم الخط کښلي دي [۱۳] او ښايي چي د دې کابلشاه هيواد به هرو مرو تر اباسينده پوري اوږد و، او د سوات جنوبي سيمه به د مردان په نامه په هيواد کي شامله وه. نو ځکه ده ځان (مردان شاه) گاڼه او دغه د اوسني مردان نوم به هم له هغه وخته پاته وي چي د سوات بهاند رود هم په دغه سيمه کي د کابل په رود گډېږي. دغه سيمه چي اوس يې د يوسفزو سمه يعني اواره مځکه بولي، عربو (الاهوار) بللې وه او د اسلام رڼا هغه وخت دلته خپره سوې وه چي د کابل اسلامي فاتح عبدالرحمن بن سمر په (٤٤ق) خپل سپه سالار مهلب بن ابی صفره (فارس الفرسان) دې سيمي ته راواستاوه او ده د کابل او ملتان په منځ کي بنه او الاهوار ونيول او يوه عربي شاعر وويل :

الـــــم تر ان الازدلــــيله بيتوا

ببنه کانوا خير جيش المهلب [۱٤]

که څه هم د بنه او الاهوار املا په خطي نسخو کي کرغېړنه سوې او په څو ډوله راغلې ده خو زه دلته د يوسفزيي افغان ليکوال سره متفق يم چي د البلاذري بنه بايد اوسنۍ بنه ډهيري وي چي د مردان په توتالي کي د نهرگوماتي څخه دوه ميله ليري د خاورو غونډۍ ده، چي د لرغون ښار وران کنډرونه هلته تر اوسه لا هم ليدل کيږي. اما د عربي الاهوار خو په ښکاره دغه پښتو نوم (هواره) ده چي اوس يې د يوسفزو سيمه بولي.

***

اوس خو نو دا ښکاره سوه چي د اسلام رڼا د لومړي هجري پېړۍ په منځ کي دغي سيمي ته رارسېدلې وه. چي د سوات او د کابل د رودو پيوستون ځای دی او له دې څخه هم سړی ويلای سي چي په درېيمه او څلورمه هجري پېړۍ کي به د غزنويانو د يرغلونو سره سم د اسلام دين په سوات کي هم خپور سوی وي چي لاندي خبري هم دغه راښيي :

حدود العالم (۳۷۲ ق) :

په اسلامي دوره کي تر لوړو ذکر سوو يادونو وروسته د يوه جوزجاني ليکوال ليکنه هم سته. د دې ليکوال نوم نه دی معلوم، خو خپل کتاب حدود العالم من المشرق الی المغرب يې په (۳۷۲) کال په دري ژبه کښلی دی. چي يوه خطي نسخه يې په شوروي اتحاد کي په (۱۹۳۰م) په عکسي توگه چاپ سوه. په دې کتاب کي د سوات ذکر، نېغ نه دی راغلی. خو د شاوخوا سيمو نومونه يې راوړي دي، مثلاً : اوسنی سوات د شمالي غرو سوات د بلور په څرگندونه کي وايي : "بلور ، ناحيتيست عظيم و اين ناحيت را ملکيست و چنين گويند که ما فرزند آفتابيم و تا آفتاب برنيايد از خواب برنخيزد و گويد که فرزند نبايد که پيش از پدر خيزد و آنرا بلورين شاه خوانند و اندرين ناحيت نمك نبود، مگر آنکه ازکشمير آرند". (حدودالعالم، د بارتولد عکسي چاپ _ لينن گراد ۱۹۳۰م).

محمدحيدردوغلات، بلور د شرق له خوا د کاشغر او يارکند او له شماله د بدخشانه سره نښلوي. لوېديځ

ته يې لغمان او کابل او جنوب يې د کشمير سيمې ګڼې [١٦].

له دې څخه ښکاري چې د بلور سيمه ډېره پراخه وه. د کشمير د غرو له لمنو څخه شروع بيا د اوسني نورستان تر کښتو درو پورې رارسېده او اوسنی سوات ګرده پکښې رانغښتې و. دا چې د دې غرنۍ سيمې حکمدارانو خپله کورنۍ په لمر پورې نښلوله هيون څنګ تر حدودالعالم درې سوه کاله دمخه دا قصه اروېدلې او ليکلې ده، چې د چين يوه شهزادو (پېغله) د پو ـ له ـ سو (پارس) يوه پاچا ته ودوله کېده خو د يوه اړودوړ په سبب، دلته د يوه غره پر څوکو وساتله سوه، چې څوك لا ر ور وانه چوي، مګر ماپښين له لمره يو څوك راشيوه سو او دا يې برالبه کړه، او له نسه يې دغه کورنۍ راپيدا سوه [١٧]. چې سر اوريل ستېن دغه ځای د پامير اوسنی قزقرغان (قلعهه دختر) ګڼي [١٨]. په همدغه کتاب کي په دغه وخت کي دغه جوزجانی مؤلف د بنير په باب ليکي : "بنيهار : جاييست پادشاه او مسلمانی نمايد و زن بسيار دارد از مسلمانان و از افغانان و از هندوان" [١٩]. بل ځای د سمرقندان په بيان کي وايي چې دا لوی کلی د ماوراء النهر سرحد دی او هندوان، وخيان، تبتيان او مسلمانان پکښې اوسي [٢٠]. له دې ټولو شهادتونو څخه ښکاري چې د اسلام رڼا له لومړۍ پېړۍ څخه بيا تر (٣٠٠ق) پورې د سوات د غرو شمالي څنډو او جنوبي سمو سيمو ته رسېدلې وه. د (٥٠٠ق) په شاوخوا کي د سوات سيمې په کشمير پورې نښتې وې او هلته يو دغسي حکومت و چې عناصر يې برهمني هندي + د اسلامي فرهنګ په ګډون وو. د کشمير مؤرخ کلهڼه پخپله کتاب راجه ترنګيني کي د هغه ځای د هندو حکمرانانو کورنۍ او احوال راښيي. مثلاً " هرشه دېوه (١٠٨٦ ـ ١١٠١م)، سيمهادېوه (١٢٨٦م) و غيره چې د دوی په حکمداري کي مسلمانانو کشمير ته مخه کړه او له شاوخوا څخه هجرتونه ورشروع سول په (١٣٢٠م = ٧٢١ق) ډېر د سوات خلك د کشمير په حکومتي چارو او اسلامي فرهنګ خپرولو کي لګيا ښکاري. يو له دغو سواتيانو څخه "شامير" نومېده، چې د کشمير د حکمدار ريتچن صدرالدين (١٣٢٠ ـ ٢٣ م) وزير و او وروسته يې له اودانيه دېوه (١٣٢٣ ـ ٣٩م) او ملکې کوته راني (١٣٣٩م) څخه قدرت په لاس کي ونيو او په (٧٣٥ ق = ١٣٣٤م) يې د سلطان شمس الدين په لقب (طاهر ميرزا) په کشمير کي د سواتي کورنۍ د سلطنت سټه ټينګه کړه او د عدالت او مساوات پر لارو چارو يې حکومت چلاوه. د کروندو څخه يې يوه شپږمه ماليه اخيسته (وفات اګست ١٣٤٢م) [٢١].

د شاه مير سواتي کورنۍ لړ تر لږه دوې پېړۍ پر ټول کشمير پاچهي وکړه، زمياور د دغې کورنۍ شجره داسې راوړې ده :-




* زمباور: معجم الانساب والاسرات الحاکمه فی التاریخ الاسلامي **٤۳۲** د قاهریگ چاپ ۱۹٥۱م.
** دغه ستلوري چي د هر حکمران د نامه سره وي دا ښیي چي د هغه سکه سته.

لکه چي تاسي وليدل د شاه مير سواتي د اخلافو حکمراني په کشمير کي تر هغه وخته وه چي د جلال الدين اکبر په لويه پاچهي د کشمير سيمي هم ورګډي سوې خو داسي ښکاري چي د سوات او بلور، چپلار، چترال، باجوړ، کونړ او کافرستان سيمي به د ځينو محلي سلطانانو او ملکانو تر فيوډالي نظام لاندي وې. ځکه چي د دغو سيمو خلکو اوس له کوچيتوبه دکلو او بانډو ژوند هم شروع کړی او لومړني زراعتي ژوند ته ور داخل سوي وو.

دغه سلطانان دکونړ د پيچ په دره کي اوسېدل او د اخوند دروېزه په قول دوی خپل اسلاف د سکندر ذوالقرنين توکم ته منسوبول او د حکمرانۍ خند يې دکشمير تر څنډو پوري رسېده او يو له دغو څخه سلطان پکهل بن کهجامن بن هندو (۸۰۰ق شاوخوا) و. چي نوم يې تر اوسه د پکهل پر سيمه باندي د پښتونخوا په شرقي شمالي څنډه (ضلع هزاره) کي يادېږي او دکونړ په دروکي يې پر غره يو ډېرليك هم پاته دی. وايي چي تر پکهل وروسته د ده زامن په سوات کي سره ونښتل او ډېر جنګونه يې سره وکړل، خو سلطان بهرام دکهجامن بل زوی لغمان او ننګرهار ونيول او د سپين غره په لمن (پايين) کي يې ځان ته ناستيځ (پايتخت) جوړکړ او ترکشميره يې پرګرد کونړ او سوات نغاره ږغېده، تر ده وروسته سلطان تومنا هم د بهرام په توګه پر دغو سيمو حکومت کاوه (د ۸۱۵ ق شاوخوا) [۲۲].

## (۲)

## د ځينو پښتنو قبايلو وروستني هجرتونه او د دوی سره شريك اجتماعي نظام

کله څه هم پښتانه په زروکلونه دمخه د آمو او سيند تر منځ سيموکي ميشته وو، خو په ميلادي پنځلسمه پېړۍ کي د منځنۍ آسيا او خراسان او ايران او هند اجتماعي او فرهنګي څېره ډېره سره ورته وه. په دې ارته جهاني سيمه کي اقتصاد، کرهڼه، سوداګري، اداره، حکمداري او هنر اوګرده نور اجتماعي توکي، تر خپلو لومړيو پوړونو تېر سوي او د فيوډاليزم د پوخوالي پتې ته ورختلي وو. ځکه نو موږ په دې سيموکي خورا غښتلي او متمرکزي شاهنشاهۍ وينو. چي شاهزاده ګان او غټ زميندارا‌ن او پانګه والان (سرمايه داران) او ځيني ستانه (روحانيون) هم غټي غټي برخي پکښي لري، او په مليونو مليونو بزګران او فلاحان، د دوی په خدمت لګيا دي.

په دې وختوکي تېموري شاهزاده ګان په ماوراء النهر او خراسان کي د خپلي کورنۍ د اقتدار څوکۍ ته رسېدلي وو. په ايران کي د آق قويونلو يعني د سپينو رمووالو ترکمانو مشرانو پاچهي کوله او په هند کي د افغاني لوديانو د ډهلي ستره شاهنشاهي په لاس کي وه.

په دغو پېړيوکي د اباسين او هلمند تر منځ سيمي د افغانستان په نامه بللي سوي دي لکه چي موږ د سيفي هروي په ليکونو کي د (۷۰۰ق) په شاوخوا کي دغه نوم مکرر وينو [۲۳]. او داسي ښکاري چي د هند مؤرخانو هم دغه سيمي په همدغه نامه بللې، لکه چي د ضياء الدين برني په ليکنو کي هم د (۷۳۵ق) په پېښوکي دا نوم راغلی دی [۲٤].

دغه افغانستان (لرغوني پښتونخوا) خو پنځه شپږ سوه کاله د غزنويانو او غوريانو په عصرکي د فيوډاليزم د نهايي پوړ يعني شاهنشاهيو د قدرت مرکز و او د ختيځ او لوېديځ تر منځ د اقتصادي او تجارتي پيوستون او د فرهنګي او سياسي نښتون لويه لاره هم وه. خو د (٦۰۰ق) په حدودوکي د چنګېزيانو له يرغل سره دغه اقتصادي او فرهنګي مرکزيت وران سو، او د قدرت مراکز هم نورو خواووته ولېږدېدل.

د هند او ايران او پاردريا غښتلو پاچهيو د دې سيمي لويي لاري د اقتصادي او تجارتي ارتباط له پاره استعمالوي، مرکزي ښارونه، لکه : پېښور، بلخ، قندهار، هرات به يې په عسکري زور پخپل لاس کي ساتل.

د پښتونخوا په غرو او رغوکي هغه پښتانه قبايل آزاد اوسېدل چي دوی کوچي ژوند کاوه او د خپلو سپين

بزيرو او مشرانو سره به په اولسي دموكراتيكه توگه د حكومتو او شاهنشاهيو له جوغه څخه ليري په آزادو غرو او دښتو كي په لېږد بوخت وو.

دغو پښتنو د خپل دود او ژوند ژواك سره سمي جرگې درلودې او په دغو جرگو كي به د دوى مشران سره راټولېدل، او د ژوندانه مشكلات به يې اسانول. دغه دودونه او ټاكلي د جرگې لاري چاري او د ژوندانه چوچ گرده "پښتو" بلله كېده نو دغه خلك لږ لږ د متمركز فيوډاليزم پولي ته ور نژدې كېدل، او هغه قبايل چي به هند ته ورشېوه سول دوى د يوه كلك او پاخه فيوډاليزم ژوندانه په څپو كي لاهو كېدل، د دغو آزادو قبايلو اقتصادي او معنوي پيوستون د هندوستان له لوديانو سره تر نورو زيات و. ځكه چي هر كال به په ژمي كي دوى د هند تودو اورشوگانو ته ور شوه كېدل او د هند لوديانو د ډهلي امپراتورانو په هم دغه قوي عناصر او تكړه غړي ورغوښتل چي د هند د ياغيانو په ابلولو او ټكولو كي له دوى څخه كار واخلي او د دوى گټي ډلي په هند كي پر كروندو او پرگنو ميشته كړي، او غټ غټ جاگيرونه وركي. لوديانو په دوره كي د پرسوري، فرملي، جلواڼي، سرواڼي، كاكړ، نيازي او نور قبايل هند ته د مهاجرو په توگه تللي او هلته دجاگيردارانو (مقطعانو) په ډول لوى لوى درباري رجال او غټ باداران ځني جوړ سوي دي [٢٥].

په دغو وختو كي د پښتنو ابدالي قبايل د ترنك او ارغنداو او هلمند په ناووكي ورو ورو د فيوډاليزم (باداري) پوړ ته ور نژدې كېدل. د دوى روابط د هرات د تېموريانو او د هند د لوديانو او سوريانو له پرتمينو دربارو سره لږ و ډېر په وده كي وو [٢٦]، په دوى كي ستر خانان او ملكان پيدا سول او د قندهار د ابداليانو لوى مشر ملك بامي پوپلزي د سلطان سكندر لودي (٨٥٥ _ ٩٠٠ ق) له درباره د قندهار د مرزبان په توگه وپېژندل سو [٢٧] او بيا وروسته د بامي يو كړوسى چي ملك صالح نومېد له سوري شېرشاه سره دغسي پيوستون لاره او خپل ايلچيان يې د سوري دربار ته استولي وو [٢٨]. د (٨٢٠ق ١٤١٧م) كال د شاهرخ بن تېمور په وقايعو كي راوړي چي : د قندهار او گرمسير او اباسين او غزني تر منځ د قندهاري سيفل زوى او ملك محمد اوخرشواني [٢٩] افغانان او سوريان اوسېدل او د هرات د شاهرخ له غښتلي امپراتورئ سره يې ډېري وهلې [٣٠].

دغه افغاني تپي او قبيلې چي د سيفي هروي په قول د هلمند له ناوې او تيري څخه بيا تر مستنگ او دوكئ او ساجي او تېراه پوري [٣١] د كسي په غرو او د ارغسان او ماروپ او پښين په درو او ورشوگانو كي د پونده وو په توگه پرتې وې، هره ورځ ډېرېدې او نفوس يې زياتېده. د هلمند او ارغنداو او ترنك ناوې د دوى د ورشو له پاره نه بسېدې او په اوارو سيمو كي يې چي د هرات د كورتيانو او تېموريانو او نورو غښتلو خانانو تر حكم لاندي وې هم زراغتي ژوند نه سواى كولاى، نو دغه پښتانه بيا د څوارلسم قرن په پاى كي د كابل د ناوې زرغونو سيمو او په وښو ډكو غونډيو او د غرو لمنو ته ور وختل [٣٢]. له (٨١٢ ق) څخه تر (٨٥٣ ق) (١٤٠٩ _ ١٤٤٩ م) پوري د تېموري كورنئ څخه الغ بېگ د سلطان ابو سعيد كورگان زوى پر كابل حكومت كاوه، د ده په عصر كي د پښتو كند او زمند او نور قبايل چي د ارغسان اورشو پر تنگه سوې وه د گومل او نورو پونده گانو سره راوپاڅېدل او كابل ناوې پر اورشوگانو يې واړول "دوى آباد سول او هغه نور اصلي اوسېدونكي پښتانه يې په نظر كي نه راوړل" [٣٣]. د دغو قبيلو مشران مداد، مدو، عثمان، سلطان شاه نومېدل چي ميرزا الغ بېگ [٣٤] گرده سره راټول كړل او د كابل سيانگ كي يې ووژل. يوازي ملك احمد د سلطان شاه يوسفزي وراره له دغه ناورينه وتښتېد او د يوسفزو سره يو ځاى د ختيځ په لوري ولېږدېد او د پېښور سيمه يې تر سواته ونيوله. دلازاك پښتانه يې وشړل او د كابل او سوات تر رودو لاندي كروندې يې له جمروده اوگنداوه تر اباسين پوري ونيولې [٣٥]. د سوات سيمه د پښتنو تر يو دمخه د سواتي خلكو په لاس كي وه، حافظ رحمت خان وايي : "قوم صواتی اگر چه در اصل از قوم افغان نيستند، اما

زبان افغانان و روش افغانان دارند ...

از اول در ملك صوات و باجوړ سكونت ميداشتند، اما وقتى مردم يوسف زايى بحد كمال رسيده همگى ملك سم تحت الجبل را در تصرف خود آوردند، متوجه ملك صوات شدند و با اهل صوات جنگها در پيش آورده، آخر الامر آنها را مستاء صل ساخته و جلا وطن گردانيدند ... و قوم صواتى از انجا بملك پكهلى كه مابين يوسفزيى و كشمر واقع است آمده و متوطن شدند ... و جميع ايشان متفرق بسه گروه اند : يكى گبرى. دوم موتراوى. سوم موميالى. و گويند كه مردم گبرى (منسوب به گبرجايى در باجوړ) از اولاد سلطان اويس و سلطان بهرام و سلطان پكهل و سلطان جهانگيرند و ايشانرا سلاطين جهانگيريه نيز ميگويند". (خلاصه الانساب ۱٤۷ د پېښور چاپ ۱۹۷۳م)

په دغو وختوكي دغو پونده اوكوچي خلكو د يوازي پونده گلوۍ اوكوچي ژوندانه له اقتصادي مرحلې څخه په زراغتي پوړكي پښه كښېښوده او د دغو نوو نيولو سيمو په كلو او بانډوكي پر كروندو او مامتو او خوړو مځكو باندي ميشته سول او په كرهڼه او فلاحت يې پيل وكړ او دغه د دوى د ژوندانه يوه نوې مرحله وه. ملك احمد يوسفزى د دغو پښتنو لېږدېدونكو قبايلو مشر و، چي په زراعتي ژوندانه كي يې د دوى مشري كوله. ده د شيخ آدم يوسفزي په كومك (چي په شيخ ملي بن يوسف مشهور و) دغه نوي په كلو او بانډوكي كښېنستلي قبايل منظم كړل او د وى ته يې يو "اجتماعي نظام" ور جوړ كړ او په امنيت او هوسايي يې تر سواته پر كروند ميشته كړل. د خوشحال خان زوى د آدم او درخانۍ په مثنوي كي وايي :

يوســــــــفزي په هــــــــغه دور
د كـــــــوچي عـــــالم په طــــور
په هــــر ځاى كي يې ميـــشته و
گـــاه په سيندگاه په مـــيره وه
گـــاه به لاړه د غـــــره خــــواته
گـــاه به بيـــا راغــله دريـــا ته
حـــادثات په حـــادثات شـــول
لاړل ميشت په سمه سوات شول

شيخ ملي چي يو پوه او ستانه سړى و اوگردو پښتنو په درنه سترگه ورته كتل. د مقنن په توگه يې د (۸۲۰ ق = ۱٤۱۷م) كال په شاوخوا كي په پښتو يو د اجتماعي قانون كتاب وكېښ چي خلكو د "شيخ ملي دوتر" = (دفتر شيخ ملى) باله.

ځكه چي له پېښوره او بيا تر اباسين او شمالاً تر سواته پوري گردي د كرهڼي مځكي دغو مهاجرو قبايلو نيولي وې او په نوي ژوندانه يې شروع كړې وه، نو شيخ ملي د كروندو او بانډو او اورشوگانو د وېش له پاره د عدالت او مساوات پر اساس برابر پخپل دفتركي داسي لاري چاري او قوانين وضع كړل چي زراعتي مځكي، اوبه، اورشو اوكلي يې د كورنيو د نفوسو د شمېر پر سر په مساوي ډول ووېشل، او دغه وېش به د قوم جرگې هم مانه او هرو مرو به خلكو خپله ټاكلې سوې كرونده كرله او له زراعتي درآمد څخه به يې هم د "شيخ ملي د دوتر" د قوانينو سره سمه گټه اخيسته.

ځكه چي د كورنيو د سړو شمېر به زياتېده يا به كمېده نو د شيخ ملي په دفتركي دا منلې سوې وه چي تر هرو لسو كالو وروسته به گرده كروندې او مامتې اوكلي او بانډې په "ملكيت عامه" كي داخلېدې او بيا به د كورنيو د سړو پر سر باندي په مساوي توگه وېشلي كېدې. كه به د يوې كورنۍ خلك لږ سوي وو لږ برخه به يې اخيسته او ډېرو به د ډېرو برخه موندله. د كروندو په وېش كي به د مځكي زراعتي استعداد او سرآب او پايان آب تر نظر

لاندي و او بانډې اوکلي اوکورونه به هم د سړيو پر سر وېشل کېدل. چي هر وېش ته يې "وار" وايیه.

د شيخ ملي په دفترکي لومړۍ پلا کرده ځمکي پر شپږو تپو TAPE وېشلي سوي وې :

د يوسفزو تپه (د شمالي مردان سمه او سوات)

د محمدزو تپه (اشنغر، چارسده)

د ګګيانو تپه (دوابه، باجوړ، چارمنګ ...)

د داودزو تپه (کلپاني، بګياړي ...)

د خليلو تپه (له پېښوره تر نوښاره ...)

د مومندو تپه (د پېښور شمال غربي پلو تر جنوب غربي پوري)

دغه شپږ تپې هره يوه پر دوتر، برخه، پټي وېشله کېده او د هر سړي برخه په پټي يعني کرونده او زراعتي ځمکه کي ونډ WAND بلله کېده او د څړ په ځای کي اورشو URSHO وه. چي د کلي جرګې به دغه ونډ او اورشو د هيسك HISK يعني پچې په وسيله ټاکل او په هره برخه کي به يو څه زراعتي ځمکه د سېرۍ SEERY په نامه له وېشه څخه بېله ايښوله کېده. خو په ګډه به د هغې برخې کرونکو کرله او حاصل به يې د کلي د عامو ګټو په کاروکي لګول کېده. لکه د مسجد (مزدك) او د کلي د هلکانو د تعليم کارونه، او هم د کلي د ډم د کورنۍ خرڅ چي کار يې ډول وهل، خلك خبرول، دلاکي، پخلنګ او سندرغاړي او نور د کلي عامه خدمتونه وو. او هم به له دغه سېرۍ څخه د کلي د هوجرې (مېلمستون) او د مېلمنو د خسماني له پاره خرڅ کېده.

د شيخ ملي په دفترکي د هستوګنځيو اوکورونو اوکليو د وېش له پاره هم لاري چاري ټاکلي وې هر کلی پر محلو وېشلی کېده. چي هغه يې چم Cham باله او هر چم به اوزکورونه د کنډر Kandar په نامه درلودل او هر کنډر به خوني د کوټې په نامه Koota لرلې. چي يو غولی Ghoolay به يې هم لاره.

په هر چم کي يو ماجت (مسجد) او يوه هوجره Hujra او يو برج به هم و. چي د دفاعي څارنو له پاره به څارنوالان پکښي ناست وو او هر کنډر به تر لسوکالو پوري يوې کورنۍ ته سپارل کېده.

په کرونده کي د يوه سړي برخه بګړي ونډ Bagray Wand وه او ټوله د لسوکالو برخه به يې موټۍ Muti بلله.

د شيخ ملي د دفتر وېش په کروندو او اورشو اوکورونوکي د هرو لسوکالو له پاره په شپږو تپوکي تطبيق سو او خلکو د شيخ ملي په لارښوونه ومانه. دا ځکه چي هم ملك احمد او هم شيخ ملي دواړه د پښتنو منلي رهنمايان وو. لکه پير معظم شاه چي وايي :

"روزګار رياست ملك احمد در تصاعد شده، روز بروز در ترقی ګشت و تمامی خښی بلکه تمامی افغان مطيع اوګشتند ... ګويند شيخ ملی نهايت متدين، متقی سړی و. د هري چاري او د هر مهم غمخور و. همګی کلي، ملکونه تپه په تپه کور په کور، د ده په دفتر ختلي وو او د ده وېشلي وو او تر اوسه هم د ده هغه تقسيم په يوسف، مندڼ کي جاري دی ..." (۳٦).

په دې ډول د شيخ ملي د دفتر اجتماعي ريفارم په زراعتي ژوندانه کي تطبيق سو خو وروسته نور افغاني قبايل هم دلته راغلل او ځيني نوري کروندې يې وداني کړې. نو دغه نوي خړوبي سوي ځمکي يې بانډه Banda بلله، او په دغو نوو بانډوکي هم افغاني نوي راليږدېدلي قبايل د شپږو اصلي تپو په څنګ کي ميشته کېدل (۳۷).

وايي چي شيخ ملي "در اندك سا لها بعد ازان بعارضه شری از عالم فانی به دار باقی خراميده و در موضع غوربندی د سوات د لويي لاري په غاړه چي دمغار ته درومي، په سمه همواره مزکه مدفون شو اوګرداګرد قبر يې د چنارو وني ولاړي دي. اوس ترې چاپېره لوی کلی هم ميشت دی. قبر د ده هورته نمايان دی" (۳۸).

درویزه لیکي : "شیخ ملی در مرض موت خود گفته بود که من در عمر خود انصرام مرام اهل حوایج، گاهی به طمع دنیاوی نکرده ام، بلکه خاصا لله کرده ام پس اگر درین سخن راستگو باشم تقسیمات ملکها و تعینات حدودها که فیمابین یوسفزی کرده ام تا روز قیامت بای بادا. و اگر دروغگو باشم از میان ایشان مرتفع باد" [٣٩].

په دغه ډول شیخ ملي خپل دفتر او وېش بشپړ کړ او تر ده وروسته یو کال پس ملك احمد هم تر دنیا تېر سو او په سوات کي هغه ځای ته نژدې ښخ سو چي د شیخ ملي هدیره هم لویي لاري ته ورځرمه وه [٤٠] او د دغو واقعو کلونه په اټکلي توګه له (٨٥٠ تر ٩٠٠ ق) پوري ګڼلای سو.

اخلاقي ضوابط :

د شیخ ملي دفتر لکه په اقتصادي چارو کي چي د پښتنو لارښوونکی و، دغسي یې د یوه جزایي او تعزیري اسلامي قانون په ډول ځیني اخلاقي ضوابط هم درلودل. په هر کلي کي به دغه ضوابط د عالمانو او سپین ږیرو په وسیله د هغې سیمي د خلکو د اجتماعي دود او دستور سره سم تطبیق کېدل، پیر معظم شاه وایي :

"یوسفزي هاله ډېر خوښ خو په نیك معاش خلق وو. د دې قوانینو مطابق به یې بېلمازانو، جوارګرو، نشه ئیزو، زناکارو او نورو فواحش کوونکو ته سزاګاني ورکېدې. په ټوله قبیله کي په دې قسم عاداتو سخت بندیز و. دې ضابطې ته به یې "شیخ ملي" وې دې په ذریعه به په
کال کي یو ځل په زبرګه میاشت کي د ټول اولس، اخلاقي تطهیر
کېده ...".

(د تواریخ رحمت خانی مقدمه ٢٩)

دغه سزاګاني د شرعي تعزیر او تشهیر پر اساس داسي وې لکه : پر خره سپرول، مخ ور تورول او په کوڅو ګرزول، د بدکاري ښځي سر ور خریل په شرعي ډول په دېرو وهل یا سنګسارول.

## (٣)

## بابر

ظهیرالدین محمد بابر د عمر شیخ زوی د سلطان ابو سعید میرزا لمسی و، چي د امیر تېمور کورګان څخه په پښت کي شپږم پاچا و (٨٨٨ _ ٩٣٧ ق) او د (٨٩٩ ق ١٤٩٤ م) د روژې پنځمه په فرغانه کي دولس کلن پر تخت کښېناست. اوولس کاله یې په ماوراء النهر کي په جنګو او غورځوپرځو تېر کړل څو چي په (٩١٠ ق ١٥٠٤ م) په لومړۍ میاشت خراسان ته راوتښتېد او د دوهمي خور په پای کي یې له محمدمقیم ارغوني څخه کابل ونیو.

بابر دلته په افغانستان کي د خپلو رقیبانو شاهزاده ګانو و پښتنو سره په غورځو پرځو لګیا و څو چي په دوشنبې غره محرم (٩٢٥ ق ٣ جنوري ١٥١٩م) د کونړ او جندول له خوا پر باجوړ ور واووښت او هلته یې د باجوړ د سلطان کلا ونیوله [٤١] چي د پښتنو دلازاکو څخه وه په جنګ کي یې درې زره پښتانه ووژل او د دوی له ککریو څخه په باجوړ کي یو (کله منار) جوړ سو.

په دغه وخت کي سلطان ویس سواتی دهګان د سلطان پکهل زوی د منګور په کلا کي ناست و او د معظم شاه په قول :

"حصار منگور تخت گاه سلاطین سواتست و در عهد سلاطین سوات آنجا نهایت آبادان بود بیرون و اندرون اماکن غریبه و منازل عجیبه و قصور رفیعه و آنهار نادره و اسواق و دکاکین پیوسته میداشتند و جمله سلاطین سوات از اولاد سلطان جهانگیر اند" [٤٢].

د بابر د یرغل په وخت کي سلطان علاؤالدین سواتي، فرخ زاد میر هنداشاه منصور د سلیمان شاه زوی او د ملك احمد تربور او ملك قره بن بهزاد مندڼ او ملك موسی بن الیسکو بایزي او ملك موسی بن ابوبکر مندڼ او ملك بازید بن محمود خلیل او ملك محمد خان بن سلطان ګګیانی او طاوس خان د شاه منصور کشر ورور د سوات او یوسفزو په سمه کي مشران وو. دوی که څه هم د شیخ ملي دفتر چلاوه، مګر په ګردو پښتنو کي ځیني داسي سازش ګران خانان او ملکان هم پیدا سوي وو چي د هرات او هند له امپراتورانو سره به ملګري وو او له دیګانانو او پونده وو او کرونکو څخه په یې دربار کلنګونه او مالیات ټولول او

دربارونو ته به یې رسول. دغه ډله ملکان او فیوډال وشمه خانان

به د "مرزبان" یا "سلطان" یا "ملك" یا "خان" په لقبو یادېدل او بابر پخپله وایي چي له یوسفزو څخه ملك شاه منصور و طاوس خان د ملك سلیمان شاه زامن "در مقام دولت خواهی بودند" (٤٣) او د سلطان ویس سواتي

په وسیله د کهراج پر کلیو څلور زره خرواره شالۍ حواله سوې، چي

هغو نه سوای ورکولای او په دغسي تحمیلاتو نه وو اموخته نو ځکه وران سول (٤٤).

بابر پخپله یو شاهزاده و او د منځنۍ آسیا د پاچهۍ په کومي کي روزل سوی و نو د ده راتګ او اقتدار دلته پر دغو آزادو کوچیانو او پونده وو او نوو په زراعتي ژوند کښېوتلو پښتنو باندي هرو مرو اثر کاوه. ځکه چي ده به دغسي سازشکاره خانان، ملکان د ځان کول او په نظامي قوت به یې پر دیګانانو باندي تحمیلات ورتپول او پر ښارو او د هندوستان پر لویو لارو باندي به یې خپل اقتدار د همدغو خانانو په وسیله ټینګاوه. نو ځکه به یې دوی ته د قبیلو ټول واك په لاس کي ورکاوه او کروندې او کښتي مځکي به یې هم دوی ته ورکولې. لکه د معظم شاه په قول وروسته خان کجو :

"بر مسند ریاست و امارت متمکن شد و در محافظت ملك مأخوذه و حراست بلاد مفتوحه و انتظام امور ملکی و بندوبست الوسی از ملك احمد فایق ترګشت و جمیع سکنه دیار افغانستان، دهګان و ګوجره هندی و نیلابی و سواتی وګبیری و تینولی و کفره کوهی مطیع او شدند. یعنی او دا خبره خو په تمامي عالم کي څرګنده وه چي د خان کجو په وقت یو لك نیزې د یوسفزیو وې. یعني یو لك سواره، پیاده او نیزه باز وو او چي ګرداوري به یې د لښکر له نورو الوسونو هم کوله تر دا به هم زیات شو".

(تاریخ رحمت خانی ١٨٤)

په دې ډول به د خان کجو ګرده سره راټول کړی لښکر یو لك څلوېښتو زرو ته رسېدو. (تواریخ ١٤٩).

دلته نو د غټو غټو ملکانو او خانانو او فیوډالیزم د تشکیل له پاره ډېره روزونکې سیمه وه او بابر او د ده اخلافو دغسي غښتلي او غټي غټي کورنۍ وروزلې او ورو ورو د شیخ ملي دفتر له سمي څخه غرو ته پناه سو او وروسته چي د انګرېز استعمار پر دې سیمه راخپور سو، نو په (١٨٦٩م) کال یې د "بندوبست" په نامه د شیخ ملي د دفتر اجتماعي نظام کورټ سره ونغاړه او کروندې یې دغسي غټو غټو خانانو ته ورتملیك کړې او مالیات یې پر وتړل چي دا نو د فیوډالي نظام یوه ارته خپرونه وه.

د شیخ ملي د دفتر خطي نسخې اوس نسته، کله چي د کرني مځکي خانانو او بډایانو خپلي کړې، او د ملکیت په ډول یې واخیستې، نو په یې د دفتر نسخې هم له منځه وایستې. ځکه دغه کتاب د اجتماعي ملکیت پر اساس د ګډ ژوندانه لاري چاري ښوولې.

دغه کتاب خو اوس نسته او کورټ ورك دی خو تر اوسه لا هم د باجوړ او سوات او مهابڼ په غرو او سردرو کي سپین ږیري او زاړه خلك دفتر پېژني او مثلاً داسي وایي :

"دغه یا هغه واقعه تر دفتر اوه کلونه دمخه یا وروسته پېښه شوې وه".

کله چي انګرېزانو خپل نوی بندوبست په (۱۸٦۹م) کال جاري کړ او د دفتر پاته اصول یې بیخي له ریښو راوکښل، خلك ډېر خوابدي سول او دغه کار یې وغانده او د ویر سندري یې وویلې. لکه د یوسفزو د تپې د پاچا کلي عزیز خان چي د پښتو یوه وګړنی شاعر و، داسي ویر پر وکړ چي ډېر اورد دی، او دلته یې یو څو بنده راوړو :

راځه چي دي خبر کـــــړم
تا پوه په زیر و زور کړم
تاوان او مالیه په ملك کي زور شوه د سرکار
ډېر تنـــګ شو زمیـــندار
خاطر دي کړه خوشحاله
ړومبـــــــــــــیه زما لاله
لکړي، بمبلي راغله شروع که په "بندوبس"
منشـــیانو په هوس
غصه هر چاته ډېره
کوي له حــده تېره
چي ورکړي لس، اته انې هله د سړي یار شي
بیا بل ته امیدوار شي
خپل نه دي د یو کس
خدمت یې دی دا بس
چي پېښ د چا څه کار سي وایي راوړه روپۍ روکې
تا نه پېژنم څــــوکې؟
په خلقو پرېووت باج
اولس یې کـــه تاراج
منت او عریضه د هیچا ناوري تحصیلدار
ډېر تنګ شو زمیندار ...
عزیز وایي ظالم دی
افسر یې مهتمم دی
هېڅونه ماتوي په خلکو هیڅ نه لري کار
ډېر تنګ شو زمیندار

(بندوبس د پېښور چاپ ۱۹۵۰ م)

بي بي مبارکه :

بابر یو ډېر هوښیار او د پښتنو په روحیاتو پوه شاهزاده و، ده د کابل او افغانستان پر پاچهي سکته نه کوله، ارت او ودان هندوستان ته یې نینګلي و. دی وایي چي د هند مځکه "قلمي" ده. خو کابل او افغانستان "سیفي" دي [٤٥] یعني په هندوستان کي د استثمار فیوډالي سیستماتیك نظام تر قلم او حسابي دېوان لاندي چلیږي، او له کرونکو او زمیندارانو او سوداګرو څخه ټاکلي مالیات د "قلم" تر سیوري لاندي، په روغه ببله جنګه راټولیږي، خو په نورو ځایو (کابل) کي داسي نه وه. باید توره یې وهلې وای او په جګړه او چپاو (چاپقون) او زور یې له خلکو څخه بود کړي وای.

بابر څو پلا د هند پر لوري يرغلونه وکړل. په لومړي يرغل کي د کونړ او باجوړ له لاري تر سواته ولاړ او د امبهير او کاتلنګ پر لار د (۹۲۵ ق ۱۵۱۹م) په صفره کي د اباسين تر نيلاب ور واووښت. ده وليدل چي له کابله تر دې ځايه د هند پر لويه لار دغه پښتانه پراته دي. چي هم زړه لري هم توره او د دوی له ملګرئ پرته د هند نيول او پر دې لار تېرېدنه هم ګران کار دی.

بابر د ملنګانو په کالوکي د لوی اختر په ورځ په مهوري کي د شاه منصور يوسفزي پايتخت ته ولاړ او هلته يې د شاه منصور لور بي بي مبارکه چي "نهايت ښايسته، عاقله هوښاره وه وليدله ... نهايت پرې مين شو او ملك احمد او شاه منصور ته يې فرمان وکښه چي د بي بي مبارکي دوستي راسره وکانئ نور نو زه غرض دربانديِ نکړم ... شاه منصور چي فرمان وليده نور منکر شو، چي مور مطلقاً لور نه لرو او بر تقديري که لور مو هم درللئ هم زمور د مغولو سره چيري نسبت نه دی شوی دا به له مور ونه شي" (٤٦).

په پای کي د بابر په اصرار دغه خبښي وشوه او د بابر په قول :

"روز جمعه ٢٦ محرم ۹۲۵ ق در ولايت مانديش ... بجهت مصلحت الوس يوسفزيی دختر او (شاه منصور) طلبيد شده بود، درين منزل خبر رسيد، که دختر شاه منصور را بامال يوسفزيی می آرند" (٤٧).

د سوات په يوسفزوکي د بي بي مبارکي کيسې تر اوسه سپين ږيري کوي، او دا هغه پښتنه ده چي د مغولو مؤرخان يې "افغاني آغاچه" بولي. د بابر لور ګلبدن بېګم داسي ليکي : "بابر در سنه ۹۲۵ ق بجور را بجنګ ګرفتند و مردم بجور را قتل عام کردند و در روز مذکور ملك منصور يوسفزی که پدر افغانی آغاچه باشد آمد. حضرت را ملازمت کرد، حضرت پادشاه دخترش، افغانی آغاچه را ګرفته در عقد خود در آوردند ..." (٤٨).

د بابر او يوسفزو او باجوړيانو خو هڅه ماتي سره سوې وه، کله چي دغه خپښي وسوه نو بي بي مبارکه د بابر لام ته بوتلل سوه او تر هغو له خپل مېږه سره نه کښېنستله او ويل يې چي "زه خپل قام له پادشاهه په جولئ غوړ ... که د پادشاه مهرباني وي زما قام دي زما جولئ ته واچاوه شي".

پادشاه ورته وويل چي "ښه پښتنې ! ستا قام مي و جولئ ته واچاوه، تقصير مي يې معاف کړ، خاطر جمع لره !" (٤٩).

وايي چي بابر د ملنګانو په کالوکي د شاه منصور تخت ته تللی و هلته د کلاساتنوالو ونيوه او بندي سو. خو د شاه منصور لور بي بي مبارکه د خپلو سهيليو سره دبانديِ ګرزېدله او دا بندي يې وليد او پوښتنه يې ځني وکړه چي څوك يې او دلته دي څه کول؟

بابر ورته وويل : که ما له دغه بنده خلاصوې، نو ژمه راسره وکه، زه به هم ځان در وښيم. بي بي مبارکي ورته وويل : ځوانه ! ځان راوښيه ! زما وعده ده چي ايله به دي کړم.

بابر وويل : زه د فرغانې شاهزاده يم، د کابل بابرشاه يم. چي لښکر مي لاندي پروت دی او دلته ستاسي د احوال ليدو ته راغلی وم.

مبارکه : نو ته دلته د يوه پتمن شاهزاده په توګه زما مېلمه يې، که څه هم سبا بيرته د جنګ پر ميدان سره درپېرو. خو اوس د هر افغان

په کاله کي دروند او منلی مېلمه يې، او هرو مرو به تا بيرته خپل لښکرګاه ته رسوي. ځکه چي پښتانه خپل دښمن پر سم ميدان په وچ زور

ماتوي او داسي ډول يو مېلمه په خپل کورکي دروند ساتي او

عزت يې کوي. ماښام چي د کلي جرګه جوړه سوه، هرو مرو به ستا پت وساتي.

وايي چي بابر په درناوي او احترام لښکرو ته د پښتنو بدرګې ورساوه. او په وروستو جګړوکي چي د بابر

لښكر بريالى سو نو "مباركه" د يو جنګ پر ميدان وسلې په غاړه د بابر د لښكرو په لاس كي ولوېده او چي بابر ته يې بوتله نو بابر پښو ته ور ولوېد او ورته ويې ويل : پښتنې ! هغه څه چي تا ماته راوښوول، اوس به زه هغسي درسره كړم.

بابر خپلو لښكرو ته امر وكړ چي دغه پښتنه بي بي به په خورا احترام كور ته رسوئ ځكه چي ما پر دې پېغلي زړه بايللى دى او ډېره راباندي ګرانه ده.

مباركه : زموږ قام د خپل پت له پاره ستا سره جنګېږي، او بابر د فرغاني شاهزاده اوس زموږ غليم دى. نو زما په زړه كي دښمني او دوستي نه يو ځاى كېږي، كه زما د ګرانښت خيال لرې، نو زموږ د قام پت راخوندي كه. موږ آزاد پرېږده !

تر دې وروسته بابر له يوسفزو سره روغه وكړه او لكه چي وويل سول بي بي مباركه يې د بابر په لښكرګاه كي ور واده كړه. اوس نو بابر د پښتنو "زوم" سو.

وايي چي يوه شپه بابر له خپلو جنګي ملګرو سره سلامشوره كوله چي څنګه د سمي پر يوسفزو باندي يرغل (چاپقون) وكاندي. دوى دا سره پتېيله چي په نيمه شپه كي به راكښېني، او پر بيدو پښتنو به نابوبره ورځغلي او دوى به ژوندي ژړاند نيسي. كله چي بي بي مباركه د بابر او ملګرو په دې چم خبره سوه، دغه خبره يې د بابر له وعدو سره سمه نه ګڼله، نو د شپې تر هغه دمخه چي بابر راويښ سي او ځان (چاپقون) ته تيار كاندي، مباركه له كوټې راووته، او ور يې د دباندي له خوا خورا ټينګ پسي وتاړه.

كله چي بابر په نيمه شپه د يرغل په نيت له خوبه پاڅېد، مباركه نه وه او ور يې پر مخ بند و. هر څه چي يې له دننه وټكاوه مباركي ږغ نه كاوه او بابر وپوهېده، چي د منصور لور خپل كار كړى دى.

كله چي سهار سو نو مباركه راغله، د كوټې ور يې وپرانيت او پادشاه ته يې سلام واچاوه، او د مېړه احترام يې وكړ او ويې ويل : "تا زما قام زما جولۍ ته را اچولى و، نو ما دوى د پادشاه له چاپقون څخه وساتل، او پادشاه مي د دوى له نوري دښمنۍ څخه وژغوره" (٥٠).

***

تر ملك ګجو را وروسته او كله چي بابر د يوسفزو تر سيمي ور ووت او بيا يې د ډهلي سلطنت د دغو پښتنو په مرسته په (٩٣٢ ق) كال له سلطان ابراهيم لودي څخه ونيو، نو يوسفزيو او سوات والو د خپلو سلطانانو او ملكانو سره آزاد ژوند كاوه، ځاى ځاى ملكانو او خانانو ځيني مځكي او كروندې ځانته اخيستې وې خو اكثرو خلكو د شيخ ملي د دفتر سره سم ګډ او مشترك ژوند درلود، او هر څو څو كاله وروسته به يې خپلي كروندې او كورونه د شيخ ملي پر دفتر باندي سم، بيا سره وېشل او دا قانون د خوشحال خان تر وخته هم لا جاري و. لكه چي په (١٠٨٦ ق) كال خوشحال خان سوات ته ولاړ او اووه مياشتي يې هلته تېري كړې، په سوات نامه كي دغه اجتماعي دودو ته اشاره كوي. خو ځكه چي پخپله خوشحال خان د خټكو د لويو خانۍ په كومي كي لوى سوى و، او پخپله هم لوى خان او د مغلو د امپراتورۍ يو ركن و، نو دغه دفتري دود ته په ښه سترګه نه ګوري او داسي وايي :

د سوات ملك چي درست لايق دى د باغونو
يوسفزيو برابر كـــــــــړ له راغـــــــــــــونو ...
كال په كال د ملك په هيسك كاندي باختونه
بې لښكرو پخپل ځان كاندي تاخــــتونه (٥١)

مسري خان :

بابر په (۹۳۷ ق) کال په ډهلي کي مړ او د جمنا پر غاړه په زرافشان باغ کي ښخ سو او زوی يې همايون پر تخت کښېناست، چي لس کاله د خپلو ورونو او نورو سيالانو سره په جنګو بوخت و. څو چي شېرشاه سوري افغان پر ده بری وموند، دی د سند او جنوبي قندهار له لوري ايران ته وتښتېد، او شېرشاه په (۱۰ محرم ۹٤۸ ق) په قنوج کي د هند پاچا سو.

تر بابر دمخه په هندوستان کي د لوديانو پښتنو شاهي کورنۍ (۸۵۵ _ ۹۳۲ ق) سلطنت کاوه او د دوی سياسي کړنلاره داسي وه چي پښتانه له روهه، هند ته ور جذب کاندي او هلته يې د لويو لويو پټيو او جاګيرونو او منصبونو خاوندان کړي [٥٢]. له افغانستانه چي به هر افغان د شېرشاه دربار ته ورغی، دومره نغدي پيسې به يې ورکولې چي د تصوره به وتلي وې. ده به ورته وويل : په هند کي چي زما لاس ته څونه شتمني راغلې ده، په دې کي راسره ته شريك يې دغه ستا معاش سو. کال په کال خپل معاش اخله [٥٣].

شېرشاه سوري خو پر هندوستان او د بابر پر زوی همايون پادشاه باندي بريالی سو او په هند کي يې يو منظم سلطنت جوړ کړ او د مدنيت اساسونه يې کښېښوول. مګر ده د هندوستان او کابل سرحد هم وټاکه او پر دغه سرحد يې د رهتاس کلا جوړه کړه [٥٤]، خو پښتانه يې آزاد پرېښوول او کله چي خان ګجو د يوسفزو مشر سو نو ده د شېرشاه سره سيالي کوله [٥٥] خو شېرشاه د خپل قوم آزادي نه ور ورانوله.

تر خان کجو وروسته د يوسفزو له سالارزيو څخه ملك مسري خان د جلال خان زوی د پښتنو مشر سو، ده له سواته بيا د اباسين تر لوړي غاړي او هزاره ضلع او مهابڼ او پکهلۍ پوري د خپل قدرت سيمه پراخه کړه او هر ځای يې د اوبو ډنډونه (ډمونه) جوړ کړل. چي تر اوسه هم د نوګرام او د چچ د غرغښتو ډنډونه د ده په نامه د "مسري خان ډنډ" بلل کيږي، او د يوسفزو او غورياخېلو تر منځ يې د جنوبي سرحد د ښارني له پاره د کابل پر رود "مسرۍ باندې" جوړه کړه چي د يوسفزو سيمه وساتي. د مسري خان د وخت قوي مشران ملك هندال اکازی او مته خان اکوزی او ملا ابراهيم الياس زی او ملك ترکيال منډن او ملك بابلی وو [٥٦]. دوی د خپل ولس چاري په آزاده توګه پخپله چلولې او د سراولف کيرو په قول : "بابر او همايون او کامران د پښتنو پر غره او سمه باندي حکومت نه سوای کولای، خو تش دوني و چي لويي لاري به يې ساتلې يا به يې د خپلو کورنيو جګړو له پاره قبايلي خلك په خپله ننګه کي درول او په دغه ډول نو تيراه، وزيرستان، سوات، دير، باجوړ د بابر په وختو کي د ده د پاچهۍ تر سيمي دباندي وو او شېرشاه دلته پر مخ نه ولاړ او د ده د سلطنت غربي بريدونه د بنو په سيمه کي تر اباسين پوري را رسېدل" [٥٧].

(٤)

روښانيان او پيربابا

بايزيد د قاضي عبدالله اورمړ زوی چي پلار او نيکه يې د وزيرستان په کاني ګورم کي اوسېدل په (۹۳۱ ق = ۱۵۲٤م) د پنجاب په جالندهر کي وزېږېده چي مور يې بيبۍ امينه د حاجي ابوبکر لور وه، د دوی کورنۍ "انصاري" بلله کېده او د بايزيد لقب "مسکين" و.

لکه چي تاسي ولوستل په دغه زمانه کي پښتانه د ژوندانه د اقتصادي پوړونو یوې نوي مرحلې ته داخلېدل او په زراعتي ژوندانه لګیا کېدل او د خان حانۍ زړی هم مخ پر قوت و، چي په دغسي ژوندانه کي د غټو غټو خانانو تر څنګ ځیني روحاني وشمه خلك هم راپیدا کېدل او د تصوف او طریقت پر غولي باندي وګړي ښه سره راټولېدل.

د دغه عصر اجتماعي تحلیل او د واقعاتو د علت او د معلول څرګندونه اوږده څېړنه غواړي چي تر دې دمخه زما په لیکنو کي سوې ده، که څوك غواړي چي په تفصیل یې ولولي، تاریخ افغانستان در عصر کورګانی هند (د کابل چاپ ۱۳٤۱ ش) او بابرشاه (د کابل چاپ ۱۳۵۱) او د خیرالبیان سریزي (د کابل چاپ ۱۳۵۳ ش) او د روښان یادکتاب (د کابل چاپ ۱۳۵۵ ش) دي وګوري.

بایزیدخېلو مریدانو (روښان پیر) او مخالفانو (پیر تاریك) باله، ده په پښتو (خیرالبیان) او په عربي (مقصودالمؤمنین) او په پاړسو (صراط التوحید) او ځیني نوري رسالې کښلي دي او د خپل طریقت اساس یې د پیرکامل پر لاسنیوي او اتو نورو مقاماتو باندي ایښی و :

شریعت
طریقت
حقیقت
معرفت
قربت
وصلت
وحدت
سکونت (۵۸)

دا خو ټوله هغه مقامات دي چي د نورو صوفیانو په طریقو او ډلو کي هم وو، خو موږ ګورو چي صوفیانو تل دغه مقامات په انزوا او نرمي، صفا او صلح کل کي تېرول او د سیر او سلوك نتیجه به یې هم دا وه چي سالك به د صلح کل او صفا خاوند و، له جنګه او مادي تلاښه به تښتېد او انسان څه چي مچ او مېږی به یې هم نه ازارول.

خو د پښتنو جغرافي او سیاسي دریځ د هند د مغولي او د ایران د صفوي غښتلیو شاهنشاهیو تر منځ داسي و، چي دوی به خپل موجودیت او آزاد ژوند ساتی او د دواړو خواوو له ظلمونو او ناغیرو څخه به ځانونه ژغوري. نو ځکه د (روښان پیر) طریقت او تصوف هم د دغه جغرافي او سیاسي چاپېره سره سم وده کوله او د ده د تلقین او خلوت او پر اتو مقاماتو تلنګ نتیجه دا وه چي په زرهاو سرفروش او فداکار مریدان، توره په لاس د سیاسي مبارزې ډګر ته راوباسي. روښان پخپله له نانقاهه راووت او د جګړې پر ډګر، توره په لاس ودرېده. د ده مریدانو او زامنو او نورو اخلافو هم د عرفانه سره سیاست درلود، او د طریقت تر چوخې لاندي یې تېره توره هم ملګرې وه.

د روښان پیر د تلقین او غورځنګ سیمه له کابله تر اباسین پوري او لوړي خوا ته تر سواته وه، د ده عمومي تبلیغ د صراط التوحید له لیکني سره په (۹۷۸ هـ = ۱۵۷۰ م) پیل سو. یوکال پس یې د اشنغر او آغاز پور جنګونه وکړل، څو چي په (۹۸۰ هـ = ۱۵۷۲ م) د تور راغه په جنګ کي ووژل سو او تر ده وروسته یې زامنو او کورنۍ او مریدانو د ده مبارزه تر ډېره وخته توده وساتله.

د روښان پیر غورځنګ د ډهلي کورګانانو ته یو غټ خطر و. ځکه چي د کابل او اباسین لاري د پښتنو په لاس کي وې، او دغه پښتانه د روښان په تلقین د خپلي آزادۍ له پاره د ډهلي د حکمرانانو سره توره په لاس په

میدان کي درېدل، او د پاچهانو د لښکرو وس به نه په رسېده.
د ډهلي د دربار سیاست داسي و چي د پیر جواب د پیر په خوله ووایي، نو یې سید علي ترمیذي (پیر بابا) چي په هند کي روزل سوی و د امیر تېمور خوریی و (مړ ۹۹۱ هـ) د پښتونخوا دې څنډو ته راولیږه، چي په ټولو یوسفزو او سوات او باجوړ کي یې پښتانه مریدان کړل، او د ده شاګردانو د روښان پیر په تورونه او تکفیر لاس پوري کړ چي مشهور اخوند درویزه ګډا یې زوی (مړ ۱۰٤۸ ق) د دې ډلي په سر کي ولاړ و، او پښتو مخزن اسلام یې د روښان د خیرالبیان په مقابل کي وکېښ، او دې کتاب د سوات په پښتنو کي دوني شهرت وموند چي خوشحال خان هم پخپل عصر کي هلته په سوات کي دوه شیه لیدل :

په سوات کي دي دوه څیزه که خفي دي که جلي
"مخزن" د درویزه دی، یا "دفتر" د شیخ ملي [٥٩]

د روښان پیرکورنۍ خو د خوشحال خان تر عصره د ډهلي له حکمرانانو سره ډغري وهلې، او په (۱۰٤۷ ق) کریمداد د جلال الدین زوی د نغر تر غورځنګ وروسته ونیول سو او د شاه جهان په امر ووژل سو [٦٠].
مګر خوشحال خان په سوات نامه کي هم پر روښان او هم پر درویزه باندي انتقادونه کړي دي او د دواړو کتابونه خیرالبیان او مخزن یې هم د ادبي او هم معنوي پلوه سپك بللي دي [٦١]. د روښان او درویزه په دغه جګړه کي یو یوسفزي ګرده بوخت وو او اخوند درویزه په تذکره الابرار کي د سرکاري ـ میني ـ باړه جنګونه یادوي، چي قاید یې ملا میرو د روښان پیر یو مشهور مرید د مندڼو له امان زو څخه و او دغو کورنیو جنګو ګرده یوسفزي په سمه او غرو کي سره ځپلي وو او دا هغه وخت و چي په هند کي د جلال الدین اکبر پاچهي وه، د (۹۹۰ ق) حدود.

## کالوخان امانزی

کالو د علي خان زوی د مبارك خان لمسی د یوسفزو له رځړو څخه و، کله چي د روښانیانو او د درویزه د مریدانو جنګونه په یوسفزو کي ساړه سول، نو کالو خان د قوم مشران په جرګه راوبلل ایوب او ملك ... اباخېل یې د ملا میرو د زوی میرویس خان سره په یوه جرګتون کي کښېنول او ورته ویې ویل :
چي د روښان او درویزه جګړه خو په موږ اړه نه لري، هغه د اخوندانو خپل منځني اختلافونه دي زموږ د قومي جرګې دا کار دی چي خپله قومي آزادي او درنښت له پردیو څخه وژغورو [٦٢].
کالو خان په دې توګه یوسفزي سره یو ځای او د خپلو قومي چارو سمښت ته متوجه کړل. کروندې یې وداني کړې او هر ځای یې د اوبو ډنډونه د وچو مځکو د اوبولو له پاره جوړ کړل، چي تر اوسه هم ډېر ډنډونه د ده په نامه پاته دي او هغه کلي چي ده جوړ کړي دي د کالوخان کالو ـ کالو ډېرۍ په نومو مشهور دي [٦٣].

## (٥)
## د اکبر او یوسفزو ډغري

د ډهلي د دربار سیاست دا و چي "خلك سره واچوه او حکومت پر کوه" د هند غښتلی پاچا اکبر خو تش په کابل کي خپل ورور شاهزاده محمد حکیم سیال باله او هغه یې دلې د حکمران په توګه منلی و، خو دی د (۹۹۳ ق) د شعبان پر دوولسمه په کابل کي مړ او د بابر په باغ کي د خپل نیکه د څنګه ښخ سو. نو اکبر پاچا د کابل د نیولو له پاره کنور مان سنګهـ له ډېرو لښکرو سره راواستاوه چي "ګرده پښتانه او روښانیان قتل عام کاندي" [٦٤].

د اټك او کابل تر منځ خو تش دغه لويه لار او د پېښور ښار د ډهلي د حکمرانانو په لاس کي و، نور پښتانه آزاد وو او د چا حکم يې نه مانه، خپلو قومي جرګو د دوی اجتماعي چاري چلولې. خو کنور مان سنګهـ دلته بې له ظلمه بل څه ونکړل، نو په (۹۹۵ ق) د اکبر له درباره زين خان کوکه د کابل مرزبان سو، او ده شاه بېګ د بګرام (پېښور) او اټك تر منځ د لارو د ساتلو له پاره وګماره [٦٥].

بلي خوا ته کالو خان د سمي پښتانه سره ټول او د اکبر د لښکرو مقابلې ته تيار کړل. په (۹۹۷ ق) کال د ډهلي خورا ډېري لښکري د زين خان کوکه د ملاتړ له پاره تر اباسين را اوښتي وې چي د درو پلوو يې پر يوسفزو بريدونه کول : لومړی لښکر د چکدرې پر سيمه. دوهم پر سدوم. دريم پر سوابي. د يوسفزو تاکتيك دا و چي ورو ورو پر شا ولاړ سي او اکبرشاهي غښتلی لښکر د غرو لمنو او جګو سيمو ته ور وخېژوي او هلته يې پوپناه کاندي. په دې ډول نو د پښتنو او شاهي لښکرو جګړې د باجوړ او سوات غرو ته رسېدلي وې چي د اکبر د دربار غټ غګټ سرلښکران دلته د پښتنو په جنګي چلونو او يرغلونو کي اريان دريان پاته وو، او نارې، بوغاري يې د ډهلي او اګرې سرو کلاووته رسېدې !

اکبر پاچا په دې پوهېده چي که د دغو خپلو لښکرو ملاتړ نه سي، او دوی د جنګ پر ډګر پر پښو ونه دروي، نو به د ده د رسوايي نغاره پر نغښت هندوستان وډنګيږي. ده د سمدستي مرستي له پاره د دربار دوه تنه غښتلي غټان لکه راجه مهيش داس بيربل (د ده لوی وزير) او بل حکيم ابوالفتح يې د خورا ډېرو لښکرو په قيادت راواستول چي يوسفزي تس نس کا.

زين خان هم له دوی سره يو ځای سو او د مله کنډ پر غاښي ور وختل، په چکدره کي يې يوه جنګي جرګه وکړه چي خپل لښکر تر بونير او لوړ سواته د يوسفزو د ماتولو او اېلولو له پاره خپاره کاندي. دلته نو اوس د يوسفزو جنګره ځوانانو، ښه غوړه او خوږه ګوله خولې ته ورغلې وه، د اکبر دغه بډای او په تن پېټ او په وسله بار لښکر د ډېرو پيسو او اسبابو سره لکه ښکلې او غونډه منډه کوتره د غره د بازانو منګولو ته ورغلې وه. تر بريکوټ چي ور تېر سول نو يوسفزو پر راودانګل. خو د اکبر پاچا لښکرو په جنګ جنګ کي ځانونه د بونير پر لور تورسك ته ورسول او هلته يې دوهمه جنګي جرګه جوړه کړه او دا يې ومنله چي د کره پي له لوري تګ د کره کرتر جګ کنډو خلتو اسان دی. مګر يوسفزو ځانونه په لوړو غرو او درو کي ساتل سمي او هواري ته نه راشوه کېدل. خو جنګي بهير يې ګړی په ګړئ زياتېده او کله چي په ميلي کي د اکبر د اتيا زرو لښکرو سره مخامخ سول داسي يې سره وځځېرل چي يو هم ژوندی پاته نه سو، دلته راجه بيربل د هندوستان لوی وزير او حين خان ښېټنی سرلښکر ووژل سول، او شاعر مزاجه ابوالفتح (چي تر يوه بوټي لاندي پټ سوی و) د زين خان سره يې دوې پښې ځلور کړې وتښتېدل او درې ورځي وروسته اټك ته ورسېدل. د يوسفزو په دغه غورځنګ او د شاهي لښکرو په پوپناه کېدو چي اکبر خبر سو په اټك کي يې زين خان او ابوالفتح سپك سپاند کړل چي ولي يې د ده د لوی وزير بيربل لاښ پرې ايښی او دوی را تښتېدلي دي؟ پاچا خپل زوی شاهزاده مراد او زين خان وګومارل چي د دغي ماتي کسات د سمي له يوسفزو څخه واخلي. نو يې په کليو کي ناستو اېلوه او بې وسلې خلکو باندي يرغلونه پيل کړل او د مردان په سمه کي يې د خپلو لښکرو له پاره په ګري کپوره او لنګر کوټ او هند کي د اباسين پر غاړه جنګي کلاوي جوړي کړې او خپل جنګي يرغلونه يې پر يوسفزو او روښانيانو باندي له دغو جنګي سنګرونو څخه جاري وساتل (ربيع الاول ۹۹٤ ق = فبروري ١٥٨٦م).

د زين خان جنګونه د سوات او باجوړ پر بوښو له يوسفزو سره او په سمه کي تر تيراه پوري له جلال الدين روښاني (جلاله د روښان زوی) سره تر (۱۰۰۱ ق ۱۵۹۲ م) جاري وو. خو سوات، بونير، باجوړ د اکبر جوغ ته غاړه نه وه ايښې، او د راورټي په قول : که څه هم د اکبر ګومارلو سرلښکرانو او جګړه مارو د يوسفزو په غرو او سمه کي

ډېري ويني توی او کلي يې وران کړل خو تر پايه يې هلته پښې ټينګې نه کړې او پښتانه يې د اسارت په زولنو نه کښې ايستل سوای [٦٦] نو اکبر چې خپل (٤٠ تر ٥٠) زره سپاره يې په دغو خونړيو جنګو کي له لاسه ايستلي وو، خپل يو بل معتمد او غښتلی قوماندان راجه تودرمل يې د لاري پر ساتنه وګوماره او ده د محمد قاسم کابلي په مرسته د کابل لار خلاصه کړه او زين خان کوکه يې کابل ته ورساوه [٦٧].

په دغو جنګو کي چې د پښتنو مشران ومړل د ځينو نومونه دا دي :

مردان خان د جلال خان زوی د امان زو مشر چې قبر يې په پنجتار کي د "د شاه مردان ځلی" بولي. _ دوران خان د مردان ورور.

قبول خان.

نيلږي خان.

سلېمان خان د ماما خان خضر زوی چې په پنجتار کي د "سلېمان بابا ډنډ" تر اوسه هم د ده په نامه يادېږي [٦٨].

د جلال الدين محمداکبر اورده پاچهي (٩٦٣ _ ١٠١٤ ق) د پښتنو سره په دغه اږودوږ کي تېره سوه، تر ده وروسته د ده زوی نورالدين جهانګير (١٠١٤ _ ١٠٣٧ ق) هم په دغه ډول د روښانيانو پښتنو سره په غورځوپرځو کي و او دوه واره کابل ته راغی، بيا چې يې زوی شاهزاده خرم (شاه جهان) د (١٠٣٧ ق) کال په دربيمه خور د اګرې پر تخت کښېناست د شمال له خوا د اوزبکو شاهانو لښکر تر هندوکشه را رسېدلی و او د همدغه کال په شوال کي يې کابل هم درې مياشتي کلابند کړ، شاه جهان لښکرخان مومند او مهابت خان د (٣٥) زرو سپرو سره د افغانستان پر لوري راوخوځول او د (١٠٣٨ ق) د لومړۍ مياشتي په شپاړسمه يې کابل ونيو او نذرمحمد خان د غوري له لاري بلخ ته ولاړ، په دغه وخت کي کمال الدين د رکن الدين افغان زوی له اټکه تر کابله پښتانه سره راوپاځول او د (١٠٣٨ ق) د لوی اختر په لسمه يې پېښور محاصره کړ، مګر سعيد خان د پېښور او کابل حکمدار د کمال لښکري له پېښوره وايستلې [٦٩] خو ځو کاله پرله پسې د پښتونخوا پر سيمو د پير روښان له لمسو سره په اړو دوړ کي نښتي وو او پخپله شاه جهان لومړی پلا د (١٠٤٩ ق) په محرمه کي او دوهمه پلار د (١٠٥٦ ق) په دوهمه خور کي او دريمه پلار د (١٠٥٧ ق) په لومړۍ خور او څلرمه پلار د (١٠٥٩ ق) په دريمه خور او پنځمه پلار د (١٠٦١ ق) د دريمي خور په څلرمه کابل ته راغی او له اټکه تر کابله لار يې په لاس کي وه، خو د ده جنګونه د اباسين له غاړو څخه تر کابل او قندهار او بلخه له پښتنو، اوزبکو، صفويانو سره جاري وو.

## (٦)

## سلطان محمود ګدون او باګوخان [٧٠] او اخوند څالاك [٧١]

ګدون د پښتنو له کاکړو څخه يو قوم دی، چې د اباسين او مهابڼ د غرو تر منځ د پښتونخوا او ضلع هزاره په پاسه شمالي څنډه کي اوسي [٧٢]. د (٩٨٠ ق) کال په شاوخوا کي د ګدون له اولسه يو لوی آزادي خواه مشر سلطان محمود ګدون راووت، چې هم پوه سړی او هم د ښو اخلاقو خاوند و، او ډېر شاګردان او دروږيان يې د تقوا او جهاد او آزادۍ په فکر له سواته تر مهابڼ او چچ هزاره او پکهلۍ پوري وروزل. د سوات له شمالي غرو څخه رانيولې د کونړ تر نورستانه (چې پخوا کافرستان و) داسي خلك پراته وو چې د اسلام دين هلته نه و منل سوی او خلکو يې زاړه عقايد او بوتان او ديني دودونه او د ژوندانه لاري چاري درلودې. د سلطان محمود ګدون غورځنګ هم د دغو جګو غرو په ورسره نښتو لمنو کي د اسلام د خپروني له پاره يو "جهاد" و چې ديني رنګ يې درلود، او د ضلع هزاره او سوات په شمالي غرونو او لمنو کي محدود و. د دغو ځايو خلك د بابر تر تېرېدو (٩٣٢

ق) را وروسته آزاد اوسېدل له سياسته او درباري شخړو او د بابر د زامنو او لمسو له کورنيو جګړو او ډغرو سره يې ډېر لږ پيوستون لاره او خپله ټوله سعيه او وسه يې د دغو کافرانو مسلمانانولو ته ټاکلې او د جهاد پر ډګر ولاړ غازيان وو. افضل خان ختک د دغه مکتب فکر د يوه تکړه شاګرد اخوند ځالاك ترين احوال داسي کاږي:

"اخوند ځالاك په سبب د حاثات يوسفزيو ته ولاړ، هور ته يې د غازيانو سره جهاد کاوه ... ډېر ملکونه، ډېر ګوټونه د ده له برکته خالي له کفارو شول. اوس واړه اهل اسلام پرې ميشته دي. نقل کا چي شاه جهان پادشاه فرمان واستاوه، دا آيت يې پکې وکيښ : اطيعوالله و اطيعوالرسول و اولی الامر منکم. مطلب دا چي دغه عالم باغی دی ته پکي استوګنه مکړه، د پادشاه ملك لره راځه. مطلب دا و چي هغه ملك د يوسفزيو دی يوسفزي زورور اولس دی، مبادا دی په پادشاهي ونيسي. ده په ځواب کي ورته وکښل چي دا خلق که له تا باغي دي، له خداي باغي نه دي زه او دوی شب و روز په غزا د کفارو مشغول يو. ته پادشاه يې. که مدد را رسي، ګنجايش لري. که نه ! ما څه لره له دې ښه کاره ځان لره بولې !" (تاريخ مرصع ۵۹۲).

د سلطان محمود دغه پاڅون خو په خپله سيمه کي محدود پاته و. نو ځکه مؤرخان د ده نوم او کارنامې نه څرګندوي، خو د ده د شاګردانو له کړو وړو څخه د ده عالي مقام او ديني غورځنګ ښه ښکاري.

د ډهلي دربار شاه جهان ته د پښتنو ډغري د اکبر له غښتلي شاهنشاهۍ سره ښکاره وې او هم هغه تاوانونه چي اړو دوړ کي د پښتنو له لاسه ور رسېدلي وو. نو يې ځکه دا کوښښ کاوه چي بيا د غالبوزو په ښور لاس ونه وهي او پخپله د پښتنو مشران په جاه او منصب او پيسو وغولوي او هم د دوی په منځ کي نفاق واچوي، چي هر وخت د خپلو سيالانو د وهلو له پاره د پاچا ملاتړ ته اړ وي. نو د شاه جهان په اودږده پاچهي (۱۰۳۷ _ ۱۰۷٦ ق) کي چي دغه سياست په کلکه چلېده په يوسفزو کي بېل خانان او په کوزه خوا کي د لاري د ساتني له پاره د ملك اکوړي ختك په کورنۍ کي لکه خوشحال خان ختك داسي غټان وروزل سول، چي په خپل منځ کي به تل توره په لاس وينو ته تږي سره ولاړ وو، خو د ډهلي دربار ته په ګرده اېل وو.

د يوسفزو په سيمه کي د مندړو د اتمان خېلو د سدوزو له قبيلې څخه خدوخېل يوه غټه او غښتلې پښه ده. چي يو مشهور ملك يې مامو خان د زرم هجري کال په شاوخوا کي ژوندی و او د ده زوی باکوخان خدوخېل د شاه جهان معاصر د يوسفزو مشر و. چي له پنجتاره يې د يوسفزو ملکي چلوله (۷۳).

باکو خان د خپل ډله ييز خاصيته سره سم له درباره سره لاس يو کړ، او له بلي خوا يې د سيمي د اسلامي غازيانو سره چي مشر يې اخوند ځالاك ترين و ملګري وکړه او په دې توګه يې ځان په دربار هم وپېژاند، څو چي د شاه جهان يو فرمان د ده د مشرتابه د رسمي پېژندلو له پاره راولېږل سو او يو آس د سرو زرو د زينه سره هم له شاهي درباره ور وښندل سو، چي په دې ډول له سواته تر سمي او بيا د اباسين له غاړو څخه تر حسن ابداله او پکهلۍ پوري د ده حکم جاري و او د اخوند ځالاك په ملګري يې په لوړه غرنۍ سيمه کي له ډوما سره چي د کافرانو پاچا و غزاوي وکړې او له بونيره تر تناوله ګرده غرونه او سمي يې له کافرانو څخه ونيولې او يوسفزو پخپله جرګه کي سره ووېشلې نو په دې ډول باکو خان د ګردو يوسفزو په مشري ومنل سو او شاهزاده داراشکوه د شاه جهان زوی په يوه فرمان کي دی "زبده الاشباء و الاعيان، قدوه الامثال و الاقران" بهاکو خان يوسفزيی وباله او وعده يې ورکړه چي دی دربار ته ورسي نو هر څونه زر چي غواړي ده ته به وبخښل سي (۷٤).

باکوخان خو د سمي او غرو د يوسفزو جاګيرداري د داراشکوه شاهزاده په مرسته له خوشحال خانه واخيسته، نو د پښتنو د دغو دوو لويو خانانو تر منځ ميرځي ولوېده (۷۵) او په وارو وارو دمخه لا د شهباز خان د خوشحال خان ختك د پلار او باکوخان تر منځ خونړي جنګونه سوي وو او په آخرني جنګ کي شهباز خان پر سر داسي غشی وخوړ چي په (۵ شوال ۱۰۵۰ ق) مړ سو (۷٦).

د همدغه کال په دوهمه خورکله چي شاه جهان د پښتونخوا په سیمو کي و، نو د باکوخان زوی هم د داراشکوه په وسیله د تابین منصب ومومند او د باکوخان او خوشحال خان د میرخۍ نغری ښه تود سو [۷۷] د دوی وروستنی جنګ هغه و چي د سوابۍ د جلبۍ پر میدان په (٦ رجب ۱۰۷۰ ق) باکوخان ماته وکړه او خپل خانه یې قتل سوه، او دمخه لا د ده ورور سیداخان او وراره یې داود وژلي سوي وو [۷۸].

د شاه جهان په پاچهي کي خو په سمه او هواره کي د باکو او ختکو ډېري سره رواني وې، خو په حقیقت کي یو منلی حکومت هم نه و. شاه جهان چي په (۱۰۵۰ ق) کال دلته راغی نو خوشحال خان د دغي سیمي راپور داسي ورکړ:

"په سمه کي یوولس زره کوره یوسفزي اوسي چي خانان یې حبیب باکو او ظریف دي. له دوی څخه درې نیم زره سپاره راوزي او د سوات د یوسفزو هلکان کچي، حمید او کاچو دي چي پنځه زره سپاره لښکر راخوځولای شي" [۷۹].

له دې څخه د سوات او سمي د یوسفزو د کاملي خپل اختیارۍ حال څرګندېږي خو دا حال تش د شاه جهان تر بندي کېدلو (۱۰٦۸ ق) پوري دغسي و. کله چي اورنګ زېب عالمګیر خپل پلار ونیو او ورور داراشکوه یې مړ کړ د ګرد هندوستان غټ واکمن (شاهنشاه) سو، نو ده د پښتنو سر ټکولو ته هم ملا وتړله او لومړی پلا یې د باکوخان غاړي ته لاس ور واچاوه چي هغه د خپلو پنځو زرو لښکرو سره د پکهلۍ د چهاچل کلا نیولې وه. په (۱۰۷۷ق) کال د کابل صوبه دار میرخان د (٤۰) زرو ولاړو سوو افغانانو سره ونښت څو چي پاچا خپل زوی شهزاده محمد اعظم د شلو زرو سپرو او ډېرو لښکرو سره راواستاوه (۱۰۷۸ق) [۸۰]. اوس نو باکو خان مړ سوی و او نورو پاتو ملګرو یې خپل ګرده زوی د غرو له کافرانو سره پر جهاد او د هغو پر مسلمانولو اچولی و، له کابله نور لښکر هم د شمشېرخان په قیادت راورسېد. په سمه کي خو څو ځایه یوسفزي پر سر وټکول سول، هنډ او شاهباز ګړ، شاهي لښکرو وران کړل، بیا یې نو د محمدامین خان په قیادت پر باجوړ او سوات برید وکړ او ډېري ورانۍ یې پېښي کړې. خو د پښتنو له بیري ژر سمي او هنډ ته راستانه سول [۸۱] (۱۰۷۸ق).

خوشحال خان په سوات نامه (۱٦۹) بیت کي یوې واقعې ته اشاره کوي چي: کوم بل چا پر ځان د مغل شاهزاده شجاع نوم کښېښود او یوسفزي یې پر ځان راټول کړل، د اټك فوجدارکامل بېګ دوی د شوال په میاشت (۱۰۷۷ق) د هنډ په مقابل کي د سیند پر ها بله غاړه تاش په تاش کړل او هغه د شجاع په ښه راوتلی سړی سوات ته وتښتېد څو چي هورې مړ او ښخ سو [۸۲].

د شاه جهان دربار د پښتنو د ځځېرلو له پاره د زین خان په حکمراني په باجوړ او سوات کي لښکري جونۍ جوړي کړې او د شهباز خان ختك، بیا د ده د زوی خوشحال خان ختك په وسیله یې د ګردو یوسفزیو څخه دوولس زره روپۍ مالیات اخیستل [۸۳].

تر دې ورسوته په امان زو کي جیون خان او د ده زوی مسري خان او صاحب خان د مسري زوي او په ختکو کي مشهور توریالی شاعر خوشحال خان د ایمل خان مومند او دریا خان افریدي په ملګري له اټکه تر خیبره داسي حال جوړ کړ چي د اورنګزېب لښکر او حاکمان په ځان پوري اریان سول. نو پخپله پادشاه د خپلو غښتلو او بې شمارو پوځونو او وسلو او توپونو سره د پښتنو مقابلې ته را رهي سو او په دوهمه خور (۱۰۸۵ ق = ۱٦۷٤ م) یې پر حن ابدال واړول او تر (۱۵ شوال ۱۰۸٦ق) پوري یې له پښتنو سره سخت جنګونه وکړل.

په دغه وخت کي سوات او د یوسفزو سمه او غر د اورنګزېب له حکمه آزاد وو. ځکه چي د همدغه کال (۱۰۸٦ق) په دریمه خور کي خوشحال خان له اکوړې څخه سوات ته ولاړ او هلته یې شپږ اووه میاشتي د یوسفزو

سره د روغي په خبرو او اترو کي تېري کړې، چي ګرده پښتانه د اورنګزېب سره په میرځی کي ودروي (وګورئ د سوات نامې ۸۷ _ ۸۸ _ ۸۹ _ ۹۰ بیتونه).

خوشحال خان په سوات کي بابي زي، خواجو زي، یوسفزي یادوي (سواتنامه بیت ۳۵) چي بابي زي د ده خسرخېل وو او له هغو ځخه ملوخان ده ته لور واده کړه چي د صدرخان مور وه (بیت ٦) نور لوی ملکان یې اودل، همزه، نالي او د کاجو یو لمسی و (بیتونه ۱۷۹ تر ۱۸۲) خو تر ټولو تکړه یو شیخ و چي میان نور نومېده او د اخوند درویزه پیر و او دروړي غوندي و، د دې شیخ نما او ناپوه اخونده سره میاخان، ماڼکی، سنګر غوندي ملکان هم ملګري وو (بیت ۲۵۹) دوه مفتیان یې درلودل چي الله داد او دوست محمد نومېدل (بیت ۲۱۲) دا ګرده د لنګر ختټك په کلي کي د خوشحال خان مناظرې ته راغلي وو (بیت ۲٦۰).

داسي ښکاري  چي د سوات پر وګړیو باندي دغو ملکانو او اخوندانو حکمراني کوله او د خان خانۍ دوره هم په دغه ډول شروع سوې وه، چي یوسفزیو په کلو او بانډو کي په کرهڼه لاس پوري کاوه او نور وګړي هم د کوچ او پونده ګلوۍ په حال کي وو او کله چي به د اورنګزېب د ګومارلو حاکمانو لاس بر سو نو به یې تر باجوړ او سواته پر دوی باندي زغل کاوه، د دوی غیلې او ګورمونه به یې تاړاکول.

دلته دا هم د هېرولو وړ نه ده چي د سلطان محمود ګدون د مجاهدینو د ډلي پاتو ملګرو په شمالي غرو کي د اسلام خپرولو په نامه له کافرانو سره جهاد کاوه، دوی به کله کله د سمي د خلکو سره په سیاسي او قبیلوي اړودوړ هم ننوتل. مګر د ډهلي دربار په دې خوښ و چي دغه "غازیان" پخپله غزا په غرو کي بوخت وساتي، چي د سمي په سیاسي شخړو کي ګډ نه سي، او د خوشحال خان، دریاخان، ایمل خان غوندي درانه پیټي د دربار پر اوږو وانه چوي.

اخوند پنجو

کله چي د لودیانو جنډه لا د هند د ډهلي د کلا پر سر رپېده، سید غازي نومی ستانه سړی له هنده راغی او د یوسفزو د یار حسین په کلي کي د کجوخان تر سیوري لاندي اوسېده. ده ته په (۹٤۳ق) خدای یو زوی ورکړ چي نوم یې سید عبدالوهاب و، او کله چي د ده پلار غازي په (۹۸۹ ق) په اټك کي مړ او ښخ سو نو عبدالوهاب په (۹۹۰ق) د پېښور لوېدیځ کلي اکبر پورې ته راغی، د شریعت او طریقت رهنما سو او ځکه چي د اسلام د پنځو بناوو پر عمل یې تل خلك پاځول نو په "اخوند پنجو" مشهور سو، مریدان یې له اټکه تر کابله خپاره وو او د خان خانۍ په وده کوونکي نظام کي یې ښه پایښت او لویښت وموند، ځو چي د عمر په شپږنوي یم کال په دوشنبې (۲۷ رمضان ۱۰٤۰ق) وفات او په اکبرپوره کي ښخ سو. مفتي غلام سرور لاهوري وایي چي دی د علم په خپرونه بوخت و، په پښتو او فارسي او هندي به یې خبري کولې، په فارسي یې شعر وایه د حنفي فقه کنزالدقایق یې له عربي ځخه په پښتو منظوم کړ [٨٤] او شیخ فاضل خدرزی چي په بیلوټ کي د پښتنو مشر و د عبدالوهاب مرید سو. او د ده نفوذ دوني ډېر و چي په (۹۹۳ ق) کله چي اکبر پاچا دوری راغلی و په اکبرپوره کي یې لیدلو ته تللی او ارادت یې ورته ښکاره کړی و [٨٥].

د اخوند پنجو دوه وروڼه عبدالرحمن او عیسی هم پېژنو چي عیسی تألیفونه لري او ښایي هغه شاه عیسی وي چي د سواتنامې په (۳٥۲) بیت کي یاد سوی دی. مګر تر اخوند وروسته د ده پر مسند عبدالرحمن ناست و [٨٦] اخوند یونس چي د پېښور په ښار کي ښخ دی هم د پنجو مرید او شاګرد و.

هم مجاهد او هم مؤلف

د یوسفزو د سمي او غرونو په تاریخ کي د اخوند پنجو یو مشهور شاګرد اخوند څالاك او د ده ورور اخوند سباك (عمر) سمته برخه لري، دوی په اصل کي توغه د ترین له قومه وو چي پلار یې له افغانستانه راغلی او د خټکو په نړۍ کي د خیرآباد شمال مغرب ته میشته و. زامن یې یوسفزو ته ولاړل [۸۷] او په چغرزو، اباسین، کابل، ګرام، هزاره او بونیر کي یې د جهاد ډنډوره ووهله، چي پکهلي، الایی، نندهار او چیلاس د کوهستان خلك اسلام ته راواړوي. ځکه چي دغه خلك د دوما نومي حکمران تر بیرغ لاندي د مسلمانانو سره جنګېدل. د اخوند څالاك سره د خوشحال خان ورور جمیل بېګ د خټکو له خوا او عمرخان د شیوې او باکوخان د پنچتار او اخوند شاه د نددهوتي مردان او یارخان د غرغښت هم ملګري وو. شیخ رحمکار کاکا صاحب خټك یې هم مل و [۸۸].

د اخوند څالاك په خوله ګرده د سمي او غرو یوسفزي او نور پښتانه د شمالي لوړو سیمو له کفارو سره په غزا بوخت وو او د سمي پر خوا د ډهلي حکمرانانو تش د کابل لویه لاره ساتله. د پښتنو پهداخلي چارو یې اړه نه درلوده [۸۹]. خو د اورنګزېب په زمانه کي چي د دوی په چارو کي لاسوهنه شروع سوه، د باکو او څالاك له پښتنو سره په (۱۰۷۷ _ ۷۸ق) هغه جنګونه وسول چي دمخه مو خبري پر کړي دي.

څالاك د علم او تدریس او تألیف خاوند هم و. په حنفي فقه کي یې فتاوای غربیه کښلې ده او دوهم کتاب یې بحرالانساب نومېږي چي د افغانانو او ترکانو او سیدانو او د طریقت د شیخانو نسبونه پکښي بیان سوي دي. دریم کتاب یې غزویه پر هغو غزاوو کښلی دی چي د ده په قیادت د بونیر او هزاره او چیلاس په کوهستانونو کي سوي دي. څلورم کتاب یې د مناقب اخوند پنجو په نامه د خپل مرشد سید عبدالوهاب په ستاینه کي کښلی و. چي څلور سره په فارسي ژبه دي [۹۰] او داسي ښکاري چي څالاك د اسلامي علومو او فارسي ژبي تکړه عالم و. چي په کشف او کرامت یې شهرت لاره او خوشحال خان غوندي نقاد او مقتدر عالم او خان به هم د ده په فتوا عمل کاوه او اخوند ملا جمال غوندي تکړه عالم د ده شاګرد و [۹۱].

افضل خان خټك خپل تاریخ مرصع کي د پښتنو اولیاوو څخه د اخوند څالاك مناقب : "قدوه محققین او زبده علمای دین" په نامه په پنځو مخو کي او د پیر سباك کرامات په دوو مخو کي کښلي دي [۹۲]. د اخوند څالاك په مریدانو کي چي هم مجاهد و او هم شاعر او لیکوال د اسلامي علومو پوهاند، دا سړی ملامست زمند نومېده چي هدیره یې تر اوسه د شینوارو په غرو کي مشهوره ده او په پښتو یې یو کتاب د "سلوك الغزات" په نامه کښلی دی، چي فقط یوه نسخه یې د کابل په خطی کتابتون کي سته.

د ملامست زمند د مړیني تاریخ د (۱۱۰۰ ق ۱٦۸۸م) کال په شاوخوا کي اټکل کولای سو. دی په پښتو نثر لیکلو کي د پیر روښان د سبك پیښې کوي، پخپلو آثارو کي د خپل عصر ډېري پیښي او واقعې او جهادونه بیانوي او ځیني په نظم هم سره پیبودي. د نومیالو او مېړنو یادونه کوي. د پښتنو مشران او جنګیالي ښيي. کله کله غزل یا قصیده یا څلوریځه هم وایي. ویرني، ستاینې، غندني لري او د منظومو په پای کي خپل نوم مست راوړي، په یوه قصیده کي وایي :

اوس غازیان دي ډېر خښي، صافي، شینواري
چي غـــــــزا همېش پر نیت د عـــــــندالله کا
او سردار د دوی اخوند غـــــازي څالاك دی
کـــــه یې خدای عـــــمر دراز عزت نـــګاه کا
له غـــــــزا به یې انشـــــا کـــــــرم څو بیانه

که مـــــــــدد راسره حــــق په هـــــره ساه کا
"مست" شاګرد د اخون جیو غازي څالاك دی
چي همېش پر کــــــــــفر غړ سبا بېګاه کا [۹۳]

د اخوند څالاك په ملګرو کي د شیوې عمر خان رڅړ، بهو خان، اخوند یونس، د تور ډهیري خاو صاحب او د هوتي مردان اخون صاحب ډنهور هم شامل دي [۹٤].

(۷)

د هند د بابري کورنۍ لمر لوېده
او د افغانانو بیا لمر خاته !

د اتلسمي مېلادي پېړۍ لومړي کلونه وو چي د اورنګزېب د مړیني سره د ډهلي د بابري کورنۍ د پرتم بیرغ پرکښته کېدو و. د کندهار پښتانه د میرویس خان هوتك په مشري آزاد سوي وو او د کابل او اټك تر منځ هم تش دغه لویه لار او ورڅرمه کلي د کابل او پېښور د حکمرانانو په لاس کي وو چي د نادرافشار د یرغل هښمه پر پښتونخوا تېره سوه، د (۱۱۵۰ _ ۱۱۵۲ ق) تر منځ یې ناصرخان د کابل او پېښور حکمران چي د ډهلي له درباره ګومارلی سوی و، مات کړ، د خیبر پښتنو ته یې ججه ورکړه [۹۵] څو چي بیرته له هنده خراسان ته ولاړ، خو یوسفزي تر سواته پر خپل حال آزاد پاته وو، خپل ملکان او جرګې یې درلودې.

تاسي په تېرو مخو کي ولوستل چي د ګردو پښتنو ډغري د بابر د کورنۍ سره له بابره تر اورنګ زېبه دوه سوه کاله پرله پسې په قومي او دیني او کله کله تش په سیاسي توګه جارې وې (۹۱۰ _ ۱۱۱۸ق) په دغو هنګامو او تودو او سړو جګړو کي د بهایو عناصرو د پیدا کېدو او ودي سره یو ځای د دغو سیمو پونده او پرکلیو او بانډو باندي میشته پښتنو برخه درلوده او د غښتلیو او پر ښارو ناستو خانانو او شاهزاده ګانو له خوا پر سر ټکول کېدل. د بهایی او باداري جنډې له هراته تر اټکه پر پښتونوا ربېدې، او د قندهار د سدوزو ابدالیو مشرانو په هرات، فراه، قندهار، ملتان کي د خانۍ مرکزونه جوړ کړي وو، چي له دوی څخه احمدشاه ابدالي د هرات د سدوزو د مشر زمان خان زوی د قندهار د شیرسرخ په ملي جرګه کي په پاچهي ومنل سو (شوال ۱۱٦۰ ق ۱۷٤۷م).

د ابدالي احمدشاه سیاست و چي ټول خراسان او افغانستان (پښتونخوا) له آمو او دامغانه تر مرګلې او کشمیره سره یوه کاندي او پر هندوستان هم هغه جنډه بیا ورپوي کومه چي د بابر په لاس راکوزه سوې وه، د احمدشاه بږغ دا و :

ټوله یو دي که غلجي که اودلــــي دي
ښه هغه چي یې د زړه ښیښه صـــفا ده
پښتانه دي ټوله لاس سره یو کاندي
چي مو نن غزا هر لوري شاوخوا ده [۹٦]

احمدشاه چي یو پښتون پاچا و، د فرید (شېرشاه سوري) او حمید (شیخ حمید لودي) د تللي برم په یاد اته واره د هند پر خوا تر اباسین واوښت، دی پخپله وایي :

د "فرید" او د "حـــمید" دور به بیا سي
چي زه وکاندم پر هر لوري تاختونه [۹۷]

احمدشاه په دغه فکر او لوړ عزم د ګردو افغانانو منل سوی او ټاکلی مشر سو او هر کله چي به د هند په سفر د پېښور پر لاره تېرېده د ګردو پښتنو څخه به یې لښکر د ځان مله کول او په دغو کي به د سمي او غره یوسفزي هم وو، شېرمحمد ګنډه پوري وایي :

"اما در عهد پادشاهی احمدشاه در دران که پادشاه افغان بود پس همه اقوام بخوشی دل اطاعت نمودند و سرداران ایشان (یوسفزیی) همرکاب [۹۸] پادشاه بغزو هندوستان رفتند و خدمات و غزوات شایان بعمل آوردند ...".

یو انګرېزي مؤرخ او سیاست مدار الفنستون چي د (۱۸۰۹ م = ۱۲۲۵ق) په پسرلي د شاه شجاع دربار ته له پېښور نه راغی دغه واقعیت په دې الفاظو راڅرګندوي :

"د احمدشاه سلوك او مینه محبت د پښتنو له هري قبیلې سره دومره زیات و چي یوې قبیلې به د هغه پر خلاف څه بغاوت هم وکړ نو هغه به همېش هغوی سره جنګ کولو نه ګرېز کولو چي هسي نه چي د پښتنو ځان و مال ته نقصان ورسي، یوسفزو، ترکلانړو، ګیګیانړو، اتمانخېلو، برمهمندو، د هشتنګر محمدزو، خلیلو مهمندو، افریدو، شینوارو، اورکزو، داودزو، خټکو، بنګښو ته به هغه (بر دراني) ویل او هم دومره مینه به یې هغوی سره کوله لکه چي به یې د خپلي قبیلې سره کوله" [۹۹].

یوسفزي پښتانه خو په اصل کي د سړه بن له څانګي څخه دي چي د پښتنو له څلورو برخو یوه غټه څانګه ده او د قندهار سړه بن یا اودالي (= دراني) قوم هم له دغي څانګي څخه دی. کله چي په نهم هجري کي (لکه دمخه چي څرګنده سوه) یوسفزي کابل ته راوختل، نو یې د کابل د سیمي د لوړوالي په سبب بر پښتانه یا "بردراني" وبلل او بیا چي دوی له کابله ورشېوه سول او د پېښور او اټك او سوات تر منځ په سمه او غره کي میشته سول، نو دوی په هغه نامه "بردراني" یادېدل او احمدشاه هم په دغه نامه دوی خپل وروڼه او د پښتنو د ولی اولس یوه غښتلې او درنه څانګه بلل، او د قندهار په ښار کي چي احمدشاه په (۱۱۷٤ق) ودان کړ، یو بازار او د ښار شرقي شمالي برخه د "بردراني" په نامه د یوسفزو او نورو مربوطو اقوامو د هستوګني له پاره وټاکله سوه، چي تر اوسه هم په دغه نامه یادېږي.

لکه چي تاسي دمخه ولوستل، یوسفزو د هیڅ پاچا د مطلق اطاعت جوغ پر خپله غاړه نه و ایښی. مګر کله چي احمدشاه تر خیبر راتېر سو، ګردو پښتنو تر سواته او باجوړه دی ومانه، او ده هم د دې سیمي قومي غټان لکه : فیض الله خان خلیل او عبدالصمد خان محمدزی د اشنغر، او فتح خان یوسفزی او ارسلا خان مومند او نور یې د ځان مله کړل او له یوسفزو څخه یې یوه پیغله چي فاطمه نومېده خپل زوی تېمور شاه ته په (۱۱۸٤ق) راواده کړه، چي وروسته د شاه زمان مور او د افغانستان ملکه وه او د فرمانو په سر کي به یې دا بیت لیکلی و :

سپهر رشك برد از بلندی جـــــــاهم

کنیز فاطمه و مادر زمانشاهم [۱۰۰]

د تېمورشاه په دربار کي هم موږ د دغي سیمي د مشرانو نومونه ارو، چي په جنګو او سفرو کي د پاچا ملګري دي. لکه په (۱۱۸۷ق) کال چي د سکهانو په جنګ کي د زنګي خان دراني سره شاه ولیخان د فتح خان کمال زوی او بهادر خان د فیض طلب خان محمدزي اشنغري زوی او د یوسفزو نور مشران ملګري وو [۱۰۱] او دغه بهادر خان هغه څوك دی چي د ده نیکه عبدالصمد خان د احمدشاه بابا د دربار غټ سړی د سرهند حکمران و او د مرهټو په جنګ کي شهید سوی و او د حسیني په قول : "امیر صاحب سخاوت بود که سخاوتش زبان زد خواص و عوام است و پانصد سوار همراه رکاب می ماند" [۱۰۲].

د یوسفزو لښکر خان کمال زوی هم د پنځوسوو سپرو نیزه والو مشر و او بل ظفر خان د فتح خان یوسفزي زوی له حسن ابداله تر کشمیره حکمران و [۱۰۳].

حسیني د شاه زمان په اردو کي د دغو برو پښتنو د لښکرو شمېر تر باجوړه اتلس زره تنه ښیي، چي ګرده

ماليه يې اوه لکه روپۍ ورکوله (۱۰٤) او يوازي يوسفزي دوه زره دوه سوه سپاره د هند د سرحداتو پاسني او څارني ته لېږل چي د سوات او بونير جنګي زلمي به هم پکښې وو (۱۰۵).

په (۱۲۰۳ق = ۱۷۸۸م) چي آزاد خان د حاجي کريمداد باميزي عرض بيګي زوی د کشمير افغاني حکمران و. د ده سره ځيني د سوات يوسفزي هم ملګري وو. مرحوم سيد جبارشاه د سوات آخرنی سيد او معزول امير به دا لنډۍ ويله چي د سواتي پښتنو پيوستون له افغاني حکمرانانو سره ښيي :

د سوات پر غاړه مي يار بايلود

اوس د آزاد تر څنګ روان کشمير له ځمه (۱۰٦)

د احمدشاه لمسی شاه زمان يو عالي همته پادشاه و، ده غوښته چي ګرد شمالي هندوستان بيا د احمدشاه په څېر له کابله سره ونښلوي او انګرېزان چي د هند له شرقي خواوو څخه د ترخه درياب پر غاړو د سوداګرو په جوله راختلي او د خپل استعمار او ناجايز اقتدار جال يې غوړاوه بيرته وشړي.

ده د دغه مقصد له پاره د ډهلي د بابري شاهزاده ګانو سره مفاهمه وکړه او د پنجاب سکهان يې وپوهول. په لاهور کي يې د دوېمشر رنجيت سنګهـ هم د ځان ملګری کړ او په (۱۲۱۳ق = ۲۵ اکتوبر ۱۷۹۸م) د پېښور پر لور وخوځېده.

لارډولزلي د انګرېز ګورنر جنرال چي په کلکته کي ناست و د شاه زمان له دغه غورځنګه وبېرېده، او خپل ټول استعماري قوتونه يې دې خوا ته راوګومارل. په خاصه توګه بيا دغه غورځنګ هغه وخت ډېر تکړه او د بېري وړ سو چي د ناپليون استازي د شاه زمان دربار او په شرقي هند کي د ټيپو سلطان شهيد دربار ته راورسېدل او د انګرېز د پېشرفت د مخنيوي له پاره سياسي خبري اتري رواني وې.

انګرېزانو د خپلو جاسوسانو بهير د پنجاب د سکهانو او د ډهلي د بابري شاهزاده ګانو او د کابل دربار ته راخوځولی و او د شاه زمان د غورځنګ اطلاعات يې پرله پسې انګرېزانو ته ورکول. شاه زمان خو په دننه هيواد کي هم د خپلو ورونو او درباري مشرانو په اختلاف کي نښتی و. خو د هند افغاني متصرفه ولايتونه يې هم هېر نه وو، دی څو واره تر پنجابه ولاړ، خو د داخلي شخړو په سبب بيرته راستون سو. د انګرېزانو ګورنر جنرال ته په (٦ جون ۱۷۹۹) دا خبر ورسېد : چي شاه زمان د خپل دربار دوه مشران وفادار خان او شېرمحمد خان سره پخلا کړل او خپل موروثي ملك يې له اټکه تر هراته وفادار خان ته وسپاره او له اټکه تر ډهلي پوري يې شېرمحمد خان وګوماره او ورته يې وويل :

"دو بازار لاهور سبب نفاق شماها برګشته امديم و اين معنی بر مزاج ما بدولت خيلی ناګوار می ګذرد. تا وقتيکه در انجا نرسم، خوشی خاطر نمی شود" (۱۰۷).

انګرېزانو ليدل که شاه زمان د افغانستان له لښکر سره د پېښور پر لار اټك ته راواوړي، دلته ګرده پښتانه او يوسفزي تر سواته ورسره درېږي او د احمدشاه بابا د پاني پت داستان بيا نوی کېږي. نو يې په سياسي چل ول لاس پوري کړ او خپل سفير جان ملکم يې ايران ته واستاوه، چي فتح علي شاه قاجار د خراسان او هرات پر خوا د افغانستان پر سيمو راوګوماري او شاه زمان له پېښوره د هرات د ساتني له پاره بيرته پر شا ولاړ سي. د استعماري انګرېزانو دا چل کامياب سو او په افغانستان کي خانه جنګي ولوېده او غلام محمد هندوستانی درويش چي د کمپنۍ په لمسون قندهار ته راغلی او هلته يې ډېر قبايلي سرداران د شاه زمان په مخالفت راپاڅولي وو، هم پخپله دسيسه کي بريالی سو او شاه زمان هغه سرداران مړه کړل. پخپله درويش خو بيرته هند ته وتښتېد، مګر په افغانستان کي يې داسي اله ګوله واچوله، څو چي شاه زمان ونيول سو او ړوند کړ سو (۱۲۱۵ق ۱۸۰۰م).

تر دې حادثې وروسته افغانستان څلوېښت کاله په خانه جنګۍ ګرفتار و او سکهانو دوني قوت او جرئت

وموند چي تر اټك راتېر سول د خيبر تر خولې پوري راورسېدل (۱۸۱۸م) اوس نو د دې مځکي اقتدار د سکهانو او بارکزو سردارانو په لاس کي و، خو عملاً هم يوسفزي او هم د سوات د جګو سيمو پښتانه د سيداحمد بريلوي د مجاهدينو سره ولاړ وو. دغه ډله هندي مجاهدين په (۱۲٤۱ق ۱۸۲٦م) د قندهار او کابل له لاري پېښور ته راغلل او پښتانه له دې جهته ورسره ملګري سول، چي دوی د جهاد اعلان کړی و. دوی له سکهانو او د کابل د سردارانو سره ډېغري ووهلې او د پښتنو د دود او رواج پر خلاف يې کارونه شروع کړل.

څو پښتانه او سمي او غرونو يوسفزي څني بېل سول لومړی خو د دوی سره د بنجتار فتح خان د کوټې سيد امير پاچا او د زيدي اشرف خان او د هنډ ښادي خان او د باجوړ امير محمد خان ولاړ وو او سيداحمد بريلوي هم په جنګو کي پر سکهانو او ګ کابلي سردارانو بريالی و. د بونير او سوات په پښتنو کي هم وګرزېد او هغو هم دی د اسلامي جهاد له پاره په خپل امارت ومانه [۱۰۸] او دوه کاله يې په پېښور او پنجتار او ښار کي تېر کړل څو چي د ضلع هزاره په بالاکوټ کي د (۱۲٦٤ق) په ذيقعده (می ۱۸۳۱م) کي د مجاهدينو مشران لکه سيداحمد او مولوي اسماعيلي او نور د سکهانو په جنګ کي شهيدان سول او هغه مجاهدين چي ژوندي پاته سوي وو د باجوړ په سمڅ او چمرکنډ کي د پښتنو سره اوسېدل او د هند او افغانستان د آزادئ غوښتونکو غورځنګونو او ملي مشرانو سره يې پيوستون درلود او د المجاهد او شعله په نامه يې کله کله په فارسي، پښتو، اردو جريدې هم خپرولې.

پنځوس کاله بيا يوسفزو او نورو پښتنو په سمه او غرو کي تر سوات، بونير او باجوړه د پښتنوالي پر دود دستور برابر آزاد ژوند کاوه، خو د مقامي خانانو او بډايانو تر جوغ لاندي وو. کله به يې د سکهانو ظالمانو حاکمانو او کابلي سردارانو ته ماليات هم ورکول، څو چي په (۱۸٤۹م) انګرېزانو د سکهانو او سردارانو کمبله ورټوله کړه، پېښور يې ونيو او د يوسفزو سيمه يې هم لږ و ډېر د انګرېزي استعمار په سيمو کي راکښې يسته.

## (۸)

## يوسفزي او انګرېز، د سوات نوی امارت

د سوات سيمه د نونسم قرن په لومړيو لسيزو کي د پښتنو د ديني او سياسي حرکاتو د ويه مهم مرکز په توګه داسي مشهوره سوه چي په لندن کي به انګرېزانو د هغې څارنه کوله او سيد جمال الدين افغان په خپل کتاب تتمه البيان کي د دغو خلکو د جهاد په يادونه او ستاينه، خپله خوښي او وياړنه ښکاره کوله.

د اتلسم قرن په وروستنۍ لسيزه کي د شاميزي د چيړي د کلي په يوې شپني صافي کورنۍ کي ميا عبدالغفور د عبدالواحد زوی وزېږېد چي لومړی يې د خپل کاله ګوروانې کوله، بيا يې د علم او طريقت په زده کړه لاس پوري کړ څو چي د (۱۸۲۸م) په شاوخوا کي په پوهه او ستانه توب داسي مشهور سو چي ډېر خلك يې شاګردان او مريدان سول. ده نقشبندي طريقه له پېښوري حضرت جي او قادريه طريقه له صاحبزاده محمدشعيب څخه په دولس کاله زهد او تقوا کي زده کړه. بيا چي په (۱۲٤۳ق) کال د هندي مجاهدينو بهير د کابل له لوري راورسېد، د دوی سره په تبليغي او عملي جهاد ګډ سو. بيا سوات ته ولاړ، د سوات او بونير او باجوړ د شيخان په کلي کي د سکهانو سره په جهاد کي شامل و. کله چي امير بيرته کابل ته ستون سو، نو د سوات اخوند صاحب سوات ته ولاړ او په سيدو شريف کي دېره سو[۱۰۹].

اوس نو انګرېزانو په پېښور کي خپله جونۍ جوړه کړه، استعماري چارو ته يې لاس ورته کړ، نوي لاري چاري يې راوړې، او خپل اقتدار يې په منظمه توګه خپراوه. د يوسفزو په سمه کي يې د ملکانو او خانانو سره خبري اتري کولې او دوی يې د خپل استعماري منظم طاقت تر جوغ لاندي راښکل.

اخوند صاحب خو يو مدبر او د پښتنو په ژوند او روحياتو رووردی رهنما و. ده د سوات او بونير او باجوړ د پښتنو يوه لويه جرګه راوغوښته. دوی يې ټوله پخپله روحاني جاذبه او اغېزه ناکه وينا، سره ونښلول او په (۱۸۵۰م) کال يې د ستانې اوسېدونکی سيد اکبر شاه چې د سيد احمد بريلوي ملګری او د ويسا وړ سړی و، د خلکو له پاره د "شرعي امام" په توګه وټاکه او په خپله اخوند "شيخ الاسلام" وګڼل سو او له پردو پرنګيانو سره يې د "جهاد" فتوا ورکړه چې د پرنګي لاس د سوات خاوري ته را اوږد نه سي. خو له بده مرغه سيد اکبر شاه ژر په (۱۱ مې ۱۸۵۷م) کال مړ سو او د ده زوی سيد مبارکشاه يې پر ځای ودرېده او په خلکو کي اړودوړ ولوېده. خو د اخوند صاحب په همت د خلکو جرګې راوغوښتلي سوې او په سمه او لوړه کي د پرنګيانو سره د سواتيانو او ګردو يوسفزو او پښتنو ډېري رواني وې. په اکثرو غزاوو کي پخپله اخوند او سيد مبارکشاه هم شامل وو، لکه :

لومړی : په (۱۸ د جولای ۱۸۵۷م) د نارنجي اول جنګ، چې د محمودزو رحيم خان او خدوخېل مقرب خان او مددخان يې د سمې مشران وو او د سوات د اخوند صاحب مريدان له دوی سره په جهاد کي ولاړ وو. دغه رحيم خان د نمير خان زوی خلکو د "زړه ور هوښيار" باله چې تر دې جنګ وروسته يې په کروندو کي د جنګ د شهيدانو له کورنيو سره د مرستي له پاره "د شهيد ونډه" وټاکله [۱۱۰].

دوهم : د پنجتار جنګ : د هند مجاهدينو يوه ډله د مولوي نعمت الله په مشرۍ د يوسفزو د پنجتار په منګل تهانه کي پراته وو. ميرباز خان د مقرب خان د اکا زوی د دوی ملګر و او انګرېزانو ته يې ماليه نه ورکوله. د سوات اخوند صاحب هم خپل مجاهدين له دوی سره ملګري کړل او پر پرنګيانو يې يرغلونه کول. له پېښوره، ميجر جنرل سډني کاټن او ميجر واکسن د ډېرو پلټنو سره راووتل او په اپريل (۱۸۵۸م) د دواړو خواوو ډېري سره شروع سوې. ميرباز خان د جنګ پر ميدان شهيد سو. د مجاهدينو قايد ګرفتار او په دار سو. کلي يې وسوځل سو او د نارنجي کوزه خوا يې ونړوله، بره نارنجي يې د پيلانو تر خپړو لاندي سره ګډه وډه کړه [۱۱۱].

دريم : امبيله : د يوسفزو د سمې شمالي خنډ ته د سدوم پر شرقي شمالي اړخ چې بونير ته لار ور وزي يو شپږ ميله اوږد جګ کنډو پروت دی، چې امبيله يې بولي او سوق الجيشي اهميت لري. دلته د بونير، سوات او هندي مجاهدينو او يوسفزو او ګردو پښتنو لښکري سره يو ځای سوي وې. مجاهدين د مولوي محمد عبدالله او ملك عيسی خان جدون په مشرۍ راغلل په سوابۍ کي يې په ټوبۍ حمله وکړه او پرنګيان يې وتښتول. د سوات اخوند صاحب هم له خپلو غازيانو سره راورسېد د (۱۸۶۳م) د اکتوبر په دريمه لسيزه کي سخت جنګونه ونښتل. د دير، باجوړ، سوات، بونير او شاوخوا غازيانو په مېړانه درې څلور هفتې پر پرنګيانو داسي زغل کاوه، چې انګرېزي قوماندان نيول چمبرلين يې د اوو زرو مسلحو پوځيانو او توپخانې سره داسي په غار ننه يستل، چې پخپله چمبرلين ټپي سو او (۹۰۸) تنه پرنګيان مړي يې په ميدان کي پراته وو او پښتنو به ويل :

د امبيلې ګيدړ ماړه شول

چې يې خوراك و د ګوره وو لړمونونه

پرنګيانو په امبيله کي داسي ناورين ليده نو يې په (۱۸ نومبر ۱۸۶۳م) دوني لښکر ميدان ته راوستل چې اخوند صاحب هم پنځلس زره غازيان د دوی مخې ته ودرول. د دسمبر تر (۱۵) پوري داسي جنګ جاري و، او دوني خلك ووژل سول چې دغه ځای "قتل ګړ" وباله سو [۱۱۲].

د پښتنو تاريخ لږ ليکل سوی دی، او که څه سته، هغه هم د پردو او پخپله پرنګيانو ليکلی دی، خو پښتنو پخپلو کلو او بانډو کي عوامي شاعران درلودل، چې په پښتو به يې د ځينو واقعاتو په بيان کي بدلي او چاربيتې ويلې. د سوات د جنګونو او د اخوند صاحب د غزاګانو بدلي هم ډېري دي. مثلاً احمدګل د ټکرۍ اوسېدونکی د بونير د جنګ په يوه چاربيته کي اخوند عبدالغفور ستايي :

غزا پسي راغلی دی په ګور يې الله نور که
مولا دي مشرف په هر طرف عبدالغفور که !

غزا پسي يې راوستل ګوجر له بيلچې نه
صاحب لره راغلي دي خطونه له مانجې نه
زهير شو پرنګي چي شو خبر له دې لانجې نه
مسواك يې ذوالفقار، ملك په وينو باندي سور که

غزا پسي ...
تربور شو د انګرېز، د صاحب څومره خزانه ده
خوراك يې شكرانه، جامه يې واړه زرغونه ده
قلعه يې چارچوبۍ په جماعت كي يې ستانه ده
منګل به د انګرېز په وينو رنګ لكه باتور كه (۱۱۳)

اكبر شاه هم د اخوند صاحب له ملايانو څخه و. هغه د قتل ګړ معركه په يوه بدله كي بيان كړېده، چي څو برخي يې دادي :

راغلي غازيان د پرنګي په دغه ګړ (۱۱٤) باندي
اوړي قتل ګړ باندي

راغلي غازيان غزا له واړه لور په لور عالمه
ګډ يې كړ په شور عالمه
دا شادومخي (۱۱۵) خدای وركړي دي په كور عالمه
اخلي به ترې پور عالمه
توره يې نه وه، ډز يې وركړ په لوړ (۱۱٦) باندي
اوړي قتل ګړ باندي

يو بند وروسته د اخوند صاحب د ملايانو شهادت داسي ښيي :

موليان مړه شول رامدد شې اې د سوات صاحبه !
اوښې مي څاڅي برسات صاحبه !
په عاجزانو باندي شوی دی پسات صاحبه !
شو بونير ميرات صاحبه !
لكه بلبلي چي پرېږي په لګړ (۱۱۷) باندي
اوړي قتل ګړ باندي

په پای كي وايي :

نه حصارېږي مومنان ترېنه خطر نه كوي
توپي پرې اثر نه كوي

ځان پرې غازي کړي چي څوك دين د پيغمبر نه کوي
بد دی چي باور نه کوي
زه اکبر شاه ملا ورځمه په ملاتړ باندي
اوړي قتل ګړ باندي (۱۱۸)

په دغسي بدلوکي د غزاوو ځيني جزويات لا هم ښکاره کيږي. د بونير د جنګ په چاربيته کي چي د پکلۍ د ترنګړۍ حميدګل ويلې ده، د انګريز په لښکرکي ګوره او سيکان دواړه ښيي :

د انګريز پلټني راغلې کلـــــکټې نه
ورسره ځيني سيکان، ډېل ګوره وو

د پښتنو له لښکرو سره بونيروال، چمله وال، ملکاوال ګرده ملګري وو. د سوات له قاشقاره هم غازيان راغلي وو. په دغه بدله کي وايي :

د باجوړ زلـــــــــــــمي پر واړه کـــړل تمام
چي لښکري ورله راغلې له قاشقاره (۱۱۹)

د نواب جان په يوه چاربيته کي د بونير د جنګ پهلوانان لکه اخوند صاحب او د برکلي ناصرخان او د سليمۍ او سوات يوسفزي او د سورکاوې شېر مياشتني جنګونه ستايل کيږي، چي کسر يې دا دی :

په سر د قتل که پرنګي ډېر وکه ارمان
شوه چيغه د خطر پسې
په سترګو يې تياره شوه چي ليدل به يې غازيان
غم راغی سراسر پسې

داسي څو بدلي د هاروبهار په (١٤ تر ٣١) مخونو کي ډارمستېټر د هغه وخت د شاعرانو له خولې کښلي او چاپ کړي دي چي د سوات او يوسفزو او تر قاشقاره د غزاګانو او غازيانو او ځينو وطن فروشانو نومونه او کارنامې پکښې ثبت دي.

د طالب ګل له يوې چاربيتي څخه دغه يو بند د جنګړيز حالت ښه روښانه کوي :

په پرنګ باندي معامله شـــــــوله تر ډېره
بيرته تښـــــــــتي که چـــــا ورکړه وله لار
توبه ګير شو سوات، له سمي، له بونيره
ډېر عـالم شو په کـــــــندوکي ترې مردار
دا چمله يې کړه د دوی لـه مرګــــــه تيره
چي راتله به پښــــــــتانه پرې وار په وار
چي د سوات عالمو وکړ ورته پام
باجوړو له پرنګي وکړه قـــــتلونه

(هاروبهار ۲۷)

د پرنګيانو خوارلس لوی منصبداران هم په امبيله کي غازيانو وويشتل. پرنګيانو ملکا د دغه ځای د يوه خاين ملك زيدالله خان په ملګري وسواځه، او پرنګي قوماندان د دغه خيانت په مقابل کي ده ته خپله تفنګچه وبخښله. خو په (۱۸٦۸م) پخپله د ده قومي پښتنو دی په همدغه وسله وواژه(۱۲۰) :

تو هم شب را بسرکی می بری ای شمع کم فرصت !

پرنگیانو دا ولیدل چي په توره او ټوپك او توپ او اور د پښتنو سره په دغو غروکي ډغري وهل اسان کار نه دی. نو یې ډېر لاس و پښې ووهل چي په پښتنوکي بېلتون واچوي او دوی پخپله سره وجنګوي. له بده مرغه خو پښتانه پخپله هم یو له بله ډېره سره خوري، اوکورنیو جنګو ته تیار وي د (۱۸٦۸م) په فبروري کي د بونیر یو څو خانان د هندي مجاهدینو سره یو ځای د سوات د خلکو او اخوند صاحب سره د جنګ په نیامت راوخوځېدل چي د اخوند صاحب لښکر بریالي سول او هغه خلك وتښتېدل او د اخوند اقتدار پر بونیر او چغرزو باندي لا هم ټینګ شو (۱۲۱).

د بونیر او غرنیو پښتنو اشوزو، دولت زو، نورازو او نورو قبیلو یرغلونه د پرنګیانو پر سیمو او سدوم باندي تر (۱۸۷۷م) پوري هم جاري وو. چي یو مشر یې عجب خان د مردان د چارګلۍ ملك او د ملا میرو روښاني لمسی و. دی پرنګیانو جرګې ته راوباله، په دې چم یې ونیو او په (۱۸۷۸م) کال یې په دار وځړاوه (۱۲۲).

د سوات دغه غورځنګ او پاڅون دوره هغه وخت تېره سوه چي د سوات روحاني مجاهد او قاید اخوند عبدالغفور په (۷ محرم ۱۲۹۵ق = ۱۲ جنوري ۱۸۷۷م) په سیدو شریف کي وفات او هورې ښخ سو. د اخوند صاحب شخصیت او درایت او روحاني نفوذ د سوات د تاریخ وروستنۍ ځلانده پاڼه وه. ده په پښتو یو مناجات هم منظوم کړی و او ډېر مجاهد او مشهور شاګردان یې لرل، چي له هغو څخه ملا نجم الدین د جلال آباد د هډې صاحب (متوفا ۱۳۱۹ق) او عبدالوهاب د مانکي شریف پیر د پښتو عقاید المؤمنین ناظم (متوفا ۱۳۲۲ق) او ملا ابوبکر د غزني پاسنی ملا او فیض محمد د کابل د موسهي اخوند او د کابل د شمالي خوا د تګاو میا حمیدالله او د تیمل ګړو ملا او د دیرشاه بابا او د کربوغې ملا او د کندیه ملا او کشر میاګل جان او د شاشو بر سوات ملا او د مترا ملا (۱۲۳) او نور په زرو مریدان او مجاهدین شاګردان وو. چي د ارشاد سلسلې یې تر اوسه لا هم چلېږي.

اخوند د کابل له درباره او افغاني شاهانو سره هم صمیمانه پیوستون درلود او تل به یې خطبه د افغاني پاچا په نامه ویله. افغاني سکه هم هلته چلېده او خلکو یې ځانونه په افغانستان پوري تړلي ګڼل او دا ټول د اخوند صاحب همت او مجاهدت و چي د سوات سیمه یې له پرنګ څخه خپلواکه ساتلې او هلته یې اسلامي احکام او اسلامي حکومت د متفرقو او سرکښو قبیلو په اتفاق چلاوه او د کابل استاځي به هم ده ته ورتلل. لکه چي په (۱۸۷٦م) چي امیر شېرعلي خان خپل سفیر احمدخان ساکزی د جلال آباد حاکم، سوات ته واستاوه. خو اخوند دوني عاقل سړی و چي د افغانستان د شاهزاده ګانو په داخلي چارو او شخړوکي یې لاس نه واهه اوګردو خلکو ته به یې د اسلامي وروری لار ښووه. په (۱۲۹۰ق) کال امیرشېرعلي خان خپل ولیعهد عبدالله جان په یوه فرمان کي اخوند صاحب ته معرفي کړ او هغه هم ومانه او د مبارکۍ لیك یې کابل ته راواستاوه (دوشنبه ۱٤ شوال ۱۲۹۰ق) چي دغه منل لیك د کابل په شمس النهار کي چاپ سوی دی (۱۲٤) او ځکه چي د دغو ځایو خلکو تل ځانونه له افغانستانه سره نښتلي ګڼل، نو په (۱۲۹۲ق) کال چي د باجوړ د فیض طلب خان او د ناوګۍ د غلام حیدر خان اختلاف سو، د امیر شېرعلي خان په توصیه یې دغه شخړه سره سمه کړه او روغه یې وکړه او هم په (۱۲۹۱ق) کال د چترال د میرزوي نظام الملك د امیر شېرعلي خان دربار ته راغلی و (۱۲۵) د اخوند تر وفات وروسته په سوات کي د جهاد نغری سوړ سو. په (۱۸۹۷م) د سالارزو او بونیر زلمو پر مله کنډ برید وکړ خو پرنګیانو اوس اخوند غوندي کلك او غټ مقابل نه درلود، دوولس ورځي جنګ و، بیرته د انګرېز راج ټینګ سو او په (۱۹ جنوري ۱۸۹۸م) دا شخړه وشلېده (۱۲٦). خو پرنګیانو پر ګردو غرونو باندي خپله قبضه ټینګوله. ملکان، خانان او نوابان او غټ زمینداران او روحانیان یې ګرده په سوات، چترال، باجوړ، دیر، بونیر، کوهستان، تالاش، چیلاس، ترامب او الایي

او پکلۍ پوري د ځان ملګري کول او د زوي په ډول به يې د خلکو ويني زبېښلې.

### (۹)

### تر اخوند راوروسته سوات

په ۱۸۹۵م کال پرنګيانو د خپل تسلط ټينګولو له پاره د مله کنډ، سوات، دي، چترال، باجوړ د غرنيو سيمو د پښتنو د اېلولو او ټکولو په نيامت د مله کنډ ايجنسي د يوه پولټيکل ايجنټ ميجر ايچ اې ډين تر مشرۍ لاندي جوړه کړه او له پېښوره يې تر چتراله پوري په پاخه سړك جوړولو لاس پوري کړ.

د دې لاري جوړولو ضرورت او اهميت د حکومت هند په يوه خط (۸ مى ۱۸۹۵م) نمبر (۲٤۰) کي ښرګند سوی و. خو د انګلنډ مرکزي حکومت او د لارډ روزبري کابينې نه غوښتل چي په چترال کي مداخله وکړي او د (۱۳ جون ۱۸۹۵م) په يوه جوابيه کي يې له دې کاره سره په ښکاره مخالفت کړی و. خو د روزبري د حکومت تر سقوط وروسته چي لارډ سالسبري کابينه راغله، د مردان او هوتي او مله کنډ او رانيي زو او چکدرې او سوات او لوهاري له لاري يې تر چتراله پوخ سړك جوړ کړ [۱۲۷] او ټول دغه قبايل يې د خپل تسلط او پوځي يرغلونو تر زغل لاندي راوستل او هم دلته و چي پښتنو به ويل :

چرته لندن چرته چترال دی
بې ننګي زور شوه، پيرنګي چترال له ځينه

پرنګی خو په خپلو استعماري چارو اخته و، د (۱۸٦۹م) تر بندوبست وروسته ارتي د کرني مځکي ځينو غټو غټو خانانو او نوابانو ته ورکړل سوې او د فيوډاليزم ريښې يې ډېري ټينګي او ګټي کړې. دغه زمينداران او بډايان د پرنګيانو مله وو. خو په ګټو پرګنو او خلکو کي لا هغه د پرنګيانو سره تربورګلوي وه. د (۱۸۹۷م) کال په مني کي د بر سوات خلك بيا جنګ ته تيار سول او د دير نواب خپلو بادارانو پرنګيانو ته خبر ورکړ، چي د پالم ملا صاحب د خپلو مريدانو سره د جهاد تياری کوي.

د سوات په لومړي پړاو کي يو ځای لنډاکی نوميږي. دلته په (۱۸ جولای ۱۸۹۷م) ملا مستان غازي چي پرنګيانو لېونی ملا او خلکو سرتور فقير باله او اصل نوم يې سعدالله خان د بونير له يوې درنې کورنۍ څخه و، د جهاد توغ ورپاوه او د شپې يې نابېره پر مله کنډ حمله وکړه. دلته له پرنګيانو سره د پښتنو لاس په لاس جنګ وسو. تر سهاره غازيان شهيدان سول او د پرنګي درې لوی منصبداران مړه او درې ټپي او ۲۱ سپاهيان مړه او ۳۱ ټپي سول [۱۲۸]. تر دې وروسته د سوات او باجوړ غازيان هم راورسېدل په چکدره، امان دره کي تر (۳۱ جولايی ۱۸۹۷م) وروسته سخت جنګونه وو او د اګست په اخرنۍ لسيزه کي جنرال بلډير پر سوات او جنډول باندي هم يرغل وکړ. پښتنو د سپتمبر تر پايه په لوړه او ژوره کي مقاومت کاوه. څو چي د اکتوبر په يوولسمه ځيني سازشکاره نوابان لکه د خار خان د جارنواب، د نواګۍ خان او نور وطن فروشان په نوي کلي کي سره راټول سول د نواګۍ خان لس زره روپۍ او خارخان درې زره او د جار خان دوه نيم زره روپۍ له پرنګيانو څخه واخيستې [۱۲۹] او خپل آزاد وطن او غيرتمن خلك يې پر پرنګي خرڅ کړل.

دا و د آزاد او ننګيالیو يوسفزو او سواتيانو افسوسناك انجام چي بې ننګو او وطن دښمنو خانانو څنګه پر پردو باندي خرڅ کړل؟ او دا هغه قوم و چي د بابر او اکبر او اورنګ راج يې هم نه و منلی.

د سوات او يوسفزو د آزادۍ رڼې ورځي تېري سوي وې. په دير کي د ملا الياس اخوند کړوسی غلام محمد خان د اتلسمي پېړۍ په منځ کي د خانۍ پر ګټ ناست و تر ده وروسته قاسم خان بيا رحمت خان (مړ ۱۸۸٤م) بيا نواب محمدشريف خان (مړ ۱۹۰٤م) بيا نواب پاچا خان (مړ ۱۹۲۵م) بيا نواب شاه جهان (عزل

۱۹٦۰م) د پرنګيانو د لاس ګوډاګيان د خلکو په وينو زبېښلو بوخت وو. خو د دې سيمي وروستنی پښتون اتل د باجوړ د جنډول مشر حاجي امراخان (عمراخان) د عباس خان مستي خېل زوی په (۱۸٦۹م) کال پر باجوړ او دير خپله خاني ټينګه کړه، هر ځای يې جنګي ټينګي او ښکلي کلاوي جوړ کړې او په نوي ډول يې لښکر مسلح او تنظيم کړل. څو چي په (۱۸۹۰م) د اقتدار جګي څوکی ته ورسېد، پرنګيان يې وبېرول او د شاوخوا نوابان او خانان يې پر راولاړ کړل. ځکه چي امير عبدالرحمن خان هم په کابل کي پرنګيانو ته لکۍ ښوروله. نو يې له کابله مکراني ملا دامراخان په مخالفت جنډول ته ور واستاوه. خو امرا خان يو مدبر او پوه سړی و، دغه ګرده ورانی يې ليدلې او چاره يې کوله، او چترال يې هم ونيوه.

په (۱٤ مارچ ۱۸۹۵م) پرنګيانو له پېښوره خپل ډېر مسلح لښکر د جنرال سر رابرټ لو په مشرۍ د پنځو نورو عسکري قوماندانو سره د سوات له لوري د امراخان په ملي جنګيالو باندي راوخېژول. ډېر جنګونه وسول، او د غازيانو ډېري ويني توی سوې. د پرنګيانو خو هم لښکر غښتلی او منظم او وسله وال وو، هم يې په خلکو کي نفاق اچاوه، او سازشکاره وطن فروش خانان يې راولاړول. څو چي په (۱۷ اپريل ۱۸۹۵م) د امراخان د اقتدار ستوری راپرېووت او کابل ته ولاړ، چي دلته د افغانستان د مېلمه په ډول اوسېده او پرنګيانو به ويل :

"ټوله قبايلي مشران يا زموږ په لاس کي دي يا زموږ د ملګري د افغانستان د امير په لاس کي دي" [۱۳۰].

امراخان په (۱۳۲۱ق) کال په کابل کي وفات او د کابل د چهاردهي د ويسل آباد د بالاجوی په هديره کي ښخ دی. اولاده يې د کوهدامن پر هغو مځکو باندي اوسي چي د افغانستان دولت هغه ته وربخښلي وې [۱۳۱].

## (۱۰)
## د سوات لرغوني پلټني

د سوات ښکلې سيمه چي د فاتحانو پر لارکابل، کونړ، باجوړ او اباسين پرته وه، د پاڼي ني په آثارو کي د (۳۵۰ق م) را پدېخوا اديانه بللې سوې، چي په پراکريت کي اوجيانه وه او معنا يې هم باغستان يا بوستان غوندي ځای دی [۱۳۲].

دا نوم د پښتو په کومك ښه تحليل مومي : ادي Uddi ودي د پښتو د ودي څخه ريښه لري چي نشو و نما او وده کول او سمسورېدل دي. له دې سره چي ديانه = وانه = بڼ پايځوړ ونښلي نو به اديانه = ودي بڼ سي. يعني وده کوونکی باغ يا سمسور بڼ چي په پاړسو يې بوستان يا ګلستان بولي.

تاسي دمخه ولوستل چي د ريګويد په سندرو کي د سوات د رود نوم سوتي يا سواستو دی. ځکه چي ددغه رود اوبه د غرو او چينو څخه راځي. نو ډېري رڼې او سپيني اوبه دي. په لرغونو آريايي ژبو کي دغه اوسنی پښتو سپين او پاړسو سپيد لکه سپيتا = سوپتا سپينتا لوستل کېده، چي په اوستا کي SPAETA او په پهلوي کي SPET = SAITA او په ويدي ژبه کي سويت CVET و [۱۳۳].

داسي ښکاري چي د سوات نوم دي هم د اوبو د سپين والي له جهته له دغو لرغونو کلماتو له ريښې څخه وي، چي په اوم ميلادي قرن کي هم د چين زاير هيون څنګ دغه سپيني او رڼې اوبه ستايي، چي د ښامار له ډنډه، رڼې څپې د هنداري غوندي راوزي [۱۳٤] او هم دغه سپين او رڼې اوبه ابوريحان بيروني هم يادوي "چي د جيوه سرمن JIVASARMAN اختر د کشمير خلك د دغه مياشتي په ۲٦ _ ۲۷ ورځ کوي او ما له دوی څخه پوښتنه وکړه چي دغه اختر ولي کوئ؟ دوی ويل : د جيلم د رود د سرچينې پر کينه غاړه يو ډنډ و چي د خدای شهر نومېده او دغه به د ويساکهـ د مياشتي په منځ کي چي اوبه ډېرېږي ځيني لرګي راوړل. دغه ځای په سوات کي و. د کيري (اوسني ګړي) پر بل څنګ پروت دی او دلته دري پنځوس ويالې سره ګډېږي. په دغو دوو ورځو کي د دغو ويالو

اوبه خورا سپيني وي او خلك وايي دا ځكه چي مهاديوا په همدغو ورځو دلته لمبېدلی و" [١٣٥].

اوس هم د سوات د سيدوشريف په شاوخوا كليو كي يو ځاى په دغه زاړه نامه په پښتو "سپيني اوبه" يعني "آب سپيد" بولي، او دا راښيي چي د سوات نوم به له دغو ړنو اوبو له لرغوني ريښې څخه راوتلی وي. سوات د آريايي اقوامو د تېرېدلو ځاى او هم ټاټوبی سو، بيا لوی سكندر له دغي لاري هند ته ولاړ اوكله چي تر ده وروسته يې يوناني جنرالان په بلخ كي او د هندوكش په سيمو او په شمال شرقي هند كي په جنگړېز بوخت وو نو بيا د يوناني او باختري تمدن اثرونه پكښې ښكارېدل. چي وروسته نو د بوديزم يو مهم مركز هم سو، خوشحال خان په سوات نامه كي وايي :

پكي لويي منارې شته، بتخانې شته
لوی كوټونه، حوېلۍ د زمانې شـــته

د نونسمي پېړۍ تر لومړيوكلو پوري چي پرنگيان تر سواته نه وو رسېدلي. دغو لرغونو او پخوانو ودانيو ته د چا پام نه و خو د خوشحال خان غاير نظر په اوولسمه پېړۍ كي لا پر دغو بتخانو او منارو او كوټونو باندې لوېدلی او په لوړ بيت كي يې ياد كړي دي.

د سوات د بودائيانو زړې بتخانې چي سنگهارامه يا ستوپه (پښتو توپ) بللي كېدې پخوا په رام كنډ (خدوخېل) منگور، كاټلي، هوډي گرام، سوني گرام، پنځي گرام، كانجي گرام او بونير كي ليدل كېدې، چي له (٢٦٠ق م) او اشوكا له وخته بيا تر اتمي پېړۍ پوري يې په هندي او بودايي اوكوشاني او يفتلي شاهي كورنيو پوري اړه درلوده.

وايي چي په لرغونيو ورځوكي د سواد د رود د سرچينو په يو ډنډكي يو غټ اژدهار (ښامار) چي ايالامه نومېده اوسېده او تا تاگا تا بودا دغه مضر ژوی سمي لاري ته راواړاوه چي د خلكوكښتونوته به تاوان نه رسوي او همدلته لږ څه لوړ تا تاگا تا خپله چپنه پرېوللې او اره كړې وه چي ډبرو يې څپونه تر اوسه لا هم ښكاري او پر بله پرښه باندي د تا تاگا تا (بودا) د پښې منډ هم ليدل كېږي [١٣٦] او په (١٨٩٥م) د سوات په درگيي، كي يو ډبرليك په خروشتهي خط موندل سوی و، تاريخ يې د شروانه مياشتي شلمه كال (١١٣ = ٥ جولای ٢٩م) دی، چي اوس د لاهور په موزيم كي خوندی دی او دلته يوه سړي يو د اوبو ډنډ جوړ كړی و [١٣٧]. د خروشتهي خط دغسي ډبرليكونه Kharoshthi-Inscriptions چي گرده تر (١٩٠٠) كاله لا زاړه دي، د مقامي خلكو يا هندي شاهزاده گانو په نامه د سوات په شاوخوا كي كشف سوي دي چي د پېښور، لاهور، سوات يا لندن په موزيمو كي خوندي دي، لكه :

١. د باجوړ د مياكلي مهر د يوه يوناني حكمران په نوم.
٢. د امب د ديوي كلي ډبرليك د لاهور په موزيم كي د (١١٦م) كال.
٣. د جمال گړي ډبرليكونه : د يوه ديني دارالمساكين جوړونه په (٢٧٥م). نور پنځه ډبرليكونه چي تاريخ نه لري.
٤. د مهابڼ د قلعه سنگ ډبرليك (١٧م) د لاهور موزيم.
٥. د پاچا دكلي ډبرليك د يوه څا دكينلو تاريخ (٢٧م) د لاهور موزيم.
٦. د پنجتار د سالم پوركتيبه چي په (٣٨م) كال دوه باغه وقف سوي دي.
٧. نه نوري مختلفي كتيبې په مختلفو موزيمو كي.
٨. په كنگله كي د پنجكوړې پر غاړه د يوه غره پر پرښه باندي يوه نوشته.
٩. د سوات په يوه خاورين لوښي نوشته د يوه يوناني حكمران له خوا.

۱۰. د تخت باهي برليکونه د (۱۹م) حدود د پېښور په موزيم کي.
۱۱. د تيرت پر يوه پرښه د سوات په کوهستان کي د بودا د منډ تر نقش لاندي.
۱۲. د سوات د بتکرې پر يوه مات خاورين لوښي نوشته.
۱۳. د کوز سوات د لوريان تنګي د پيلامې کلي پنځه ډبرليکونه د کلکتې په موزه کي [۱۳۸].

د سوات د لرغونيو آثارو د کيندلو او پلټنو کار له (۱۹۵٦م) راپدېخوا د يوې ايټالوي علمي ډلي په لاس شروع سوی دی چي د زړو ښارو او ودانيو ځايونه يې کيندلي او خورا ډېر آثار يې را ايستلي دي چي د سوات په موزيم کي پراته دي.

دغه علمي ډله وايي چي په دغو لرغونيو آثارو کي له (۵۰۰ ق . م) څخه راپدېخوا شيان پيدا سوي دي. دا وديګرام له موندل سوو آثارو څخه ښکاري چي دغه ځای د سکندر د حملې پر وخت هم ودان و او د سلطان محمود په زمانه کي بيا ودان سوی و. په ځينو نورو ځايو کي د دريمي او څلورمي ميلادي پېړۍ آثار پيدا سوي دي او منګوره هم هغه ځای دی چي په (۵ _ ٦) پېړۍ کي د حکومت مرکز و. سن ين چيني سياح چي په (۵۱۸م) د تالو معبد يادکړی دی هغه دغه اوسنۍ بتکره ده چي يو سل و شل واړه معبدونه يې شاوخوا ته پراته وو او اوس هم ډېر آثار پکښې راوتلي دي او دلته د ډبرينو شيانو او بوتانو د جوړولو فن داسي لوړې درجې ته رسېدلی و چي د پروفيسر ټوچي په قول په اوومه پېړۍ کي د دې ځای استادکاران چين ته بېول سوي وو چي هلته معبدونه په خپلو هنري ښکليو آثارو ښايسته کاندي [۱۳۹].

(۱۱)
خوشحال خان او سوات

د خټکو او يوسفزو تر منځ يو د کابل رود چي دوی يې د لړ پسو په اعتبار "لنډۍ" بولي بهېږي، ښۍ خوا ته له نوښاره تر اټکه د خټکو اوکيڼ لاس ته د يوسفزو سيمه ده، يوسفزي خو تر سواته او بونيره پراته او يو لوی پښتون ټبر دی چي د خوشحال خان په وخت کي يوازي د سمي يوسفزي يوولس زره کوره وو چي ګرده پنځه زره سپاره ځني راوتل [۱٤۰].

خټک خو په شمېر کي لږ او عدد يې د دېرو تپو، نه نيم زروکورو ته رسېده [۱٤۱]. چي اوس يې ټوله سړي دوو لکو تنو ته نژدې دي [۱٤۲]. دوی د لويو لارو سره نژدې پراته وو، او په خاصه توګه ملك اکوړی (۹۵۲ _ ۱۰۰۲ق) د چنجو زوی د کوهاټ په کربوغه کي اوسېده. چي د قبايلي تربورګلويو له منځه راووت او د خټکو په سرای کي د کابل رود پر غاړه ميشت سو، چي دغه ځای د ده په نامه اکوړه وباله سو (حدود ۹۸۹).

د ډهلي مغولي دولت د خپل ډله ييز خاصيته سره سم د غښتلو اوګڼو يوسفزيو د وهلو او ټکولو له پاره د کابل سين پر جنوبي غاړه د اټك او پېښور پر لويه لار دغسي يوه غښتلې او سره نښتې د پښتنو کورنۍ له خدايه غوښته چي هم په قبيلوي فيوډالي ډګر کي او هم په ميدان کي د يوسفزو مخي ته ودرېږي. نو لکه چي د هر استعماري قوت کړنلاره "د نورو سره جنګول او پر دوی حکومت چلول وي" د پېښور اوکابل صوبه دارانو او منصبدارانو هم د يوسفزو او خټکو تر منځ د جنګ اور بلاوه او د پښتنو په سره جنګولوکي به يې خپلي ګټې پلټلې. لکه په (۱۰۹۵ق) چي اميرخان د مغولي دولت حکمران نه لکه روپۍ د ملك حمزه په سيله کي د کړبي د مومندو د وهلو له پاره خرڅي کړي وې [۱٤۳].

د خوشحال خان د کورنۍ او د يوسفزو دغه فيوډالي رقابت پخوانی و،کله چي اکبر پاچا په (۹۸۹ق) د

خپل ورور میرزا محمد حکیم اېلولو ته راغی په نیلاب کي یې له خیرآباده تر نوښاره سیمه ګرده ملك اکوړي ته ورکړه [١٤٤] نو د (٩٩٤ق ١٥٨٦م) په هغه خونړۍ جګړه کي چي د اکبر لوی وزیر بیربل هم غخول سوی و، ختك د اکبر پاچا په سیله کي ولاړ وو او وروسته نو هم د یحیی خان او شهباز خان په وختو کي د ختکو او یوسفزو دغه بدۍ وې چي افضل خان ختك یې احوال لیکلي دي [١٤٥] او د (١٠٥٠ق) کال د روژې په میاشت کي د خوشحال خان پلار شهباز خان هم د یوسفزو د کمالزیو په تپه کي ټپي او مړ سوی و :

سن د هـــــــجر زر پنــــــځوس

چي شهید سو شهباز خان [١٤٦]

تر دې دمخه د شهباز پلار یحیی خان (٩٦٩ _ ١٠١٩ق) چي د اکوړي زوی و "له یوسفزو څخه مسري کوټ (بانډه) نیولی او ښه ښه سرداران د یوسفزو یې د ملك مامو سره وژلي وو او بیا چي شهباز خان پښه په رکاب فتح مآب کښېښوه، خوب او آرام د یوسفزیو ورك شو، کرات و مرات یې مندڼ مړه کړه ... او په وخت د خپلي سرداری یې له مندڼه له اکوزیه نه یې خراج او باج اخیست. تمام مندڼ یې په ضرب د توري مسخر کړي وو" [١٤٧].

په دې ډول "د یوسفزو عداوت او دښمني په میراث و خان علیین مکان ته پاتو شوه" [١٤٨] او دغه بدمرغي تر څلورو پېړیو او خوشحال خان پوري راورسېده، چي د ختکو د کورنۍ "دولت خواهه" او یوسفزیی "متمرد" ګڼل کېدل [١٤٩] او د دوی د قبیلوي جنګونو او زغلونو پېښي په تاریخ مرصع کي ډېري څرګندي سوي دي.

کله چي د اورنګزېب پاچهي د پښتونخوا پر سیمو باندي له قندهاره تر اټکه راغله او خوشحال خان هم د ګردو پښتنو د یوې ګډې غوښتني او غاو په خاطر د دې ملي پاڅون او پښتني غورځنګ په سر کي ودرېده او داسي یې وویل :

درست پښتون تر قندهاره تر اټکه

سره یو د ننګ په کار پټ و اشکار

دلته نو اوس د ده د مشرۍ مقام او د شاعر په څېر د خلکو د ښوونکي او رهبر په بڼه دا تقاضا وه چي د زړو ناوړو او ضررناکو ناغېړیو او بدیو څخه لاس واخلي او د ډهلي د پاچهانو په ګټه د خپلو پښتنو سره ونه جنګېږي. دی پر خپل پخواني حال او د ډهلي د پردي دولت پر نوکري او دولت خواهي افسوس کوي او داسي وايي :

د مغل نمك مي وخـــــــوړ شــېږ پېړۍ
ما د زرو پـــــکي روغي کـــــــړې پېړۍ
رعیت مـــــي یوسفزیه درست خــــتك و
په عزت او په حرمت کي مي څه شك و
د مغل دپاره مـــــــــــــا توري وهلې
پښتنو به راته کــــــړې ډېري ښکنځلي
که ورکزیه که بنګښ او که یوسف دي
د یو همه د مـــــــا د تېغ په تاسف دي
پښـــــــتانه مي په زرګـــونو دي وژلي

په سرونو به يې خره غـــوايه وو لښلي
لا تر اوســـه د ســــــــرونو يې انبار دی
په اټك په پېښور كـــي يې مـــــنار دی

(سواتنامه تر ٤٩ بيت وروسته)

دا تريخ اعتراف چي ده خپل قوم واژه او د پښتنو ښكنځل به يې اورېدل د خوشحال خان د شاعرۍ يوه خاصه پاڼه ده، دی خو د ډهلي په دربار كي په "غزت او په حرمت" و، يوسفزي او ختك يې ګرده رعيت و، مګر قومي او ملي وجدان دی تراټه، پخپله وايي :

د مـــــــغلو زيست روزګار راباندي اور و
په صحبت يې د ما رنګ لكه تور سكور و
را په غاړه د مـــــــــــغل منصب په زور و
ته به وايي چي منصب نه و ســـــــور اور و

(سواتنامه ٥٧ _ ٥٨)

د خوشحال خان د تش فيوډالي ژوندانه دغه جوله خو ډېره كرغېړنه او ناوړه ده چي پښتنو به نور څه (يعني آزادي) غوښته او دی به يې ښكانځه خو دی په سره اوركي ولاړ و او د مغل منصب يې د خپلي غاړي طوق ګاڼه. نو ځكه د تلافۍ په هڅه كي د ده د ژوندانه يوه روښانه پاڼه راواوښته، د پښتنو خان او ملك خو و، اوس نو مشر او رهبر هم سو، د واړو پښتنو په ننګه ودرېد :

ناګـــــــــهانه په دا ملك فساد بنياد شو
د ما هم د "تلافۍ"كار په ياد شـــــــــــو
نن د واړو پښتـــــــــــنو په ننګ ولاړ يم
دا چي هسي په هر در، هر درنګ ولاړ يم
چي پښتون شوم په دا هسي سپينه ږيره
نور مي خدای مـــكړه مغل وايم په څيره
كه د ننګ پښتـــانه شته ساعت هم دا دی
په دا ننګ كي سر و مـــال و ملك فدا دی

خوشحال نو اوس د پښتنو د آزادۍ نقشه پخپل خيال كي سره راټرله، او د خپل آزاد وطن بريد يې ټاكه :

و مــــــــــــــغل ته به كړم نن اټك پوله
ملك به خلاص كړم د مغل له غاله غوله

(سواتنامه ٩٠ بيت)

د ډهلي درباركوښښ كاوه چي دی بيرته د خپل منصب تر جوغ لاندي راولي، پخپل بياض كي داسي ليكي :

"مهابت خان صوبه بيا مونده د ډهلي نه را روان شو، بيا يې ما لره يې كښل راستول، چي زه خو د تا په ملګري نازېږم، ما لره په مخه راشه چي د ملك د بندوبست مصحلت سره وكړو، ما خو يوه په زړه كي نيولې وه د مغل د نوكرۍ مزي مي په زړه كي شلولي وو، ورته مي هر چه راست، درست، وكښل او دا رباعي مي ورته په فارسي كي وكښله :

ګفـــــتم كه مغل شويم به شمـــشير زدن
افغانرا كه بس بريدم ګـــــــــــــــــــردن

آخر نشدم مغل هـــــــــــمان افغانم
حيفست زكس كوشش بيجا كردن [۱۵۰]

د يوې ټولني په اجتماعي جوړښت او تشكيل كي محيطي او زماني تقاضاوي دغسي بدلون هم راولي چي پير روښان د تصوف له خانقاهه د جګړې ميدان ته راوزي او د خټكو خان بايد يوسفزو ته په مركه او جرګه ولاړ سي.

خوشحال خان د (۱۰۸٦ق) د دريمي خور په اوومه سوات ته رهي سو اوه مياشتي هلته وګرزېده [۱۵۱] د يوسفزو ښه او بد يې ګرده وليدل بې له سواتنامې د ده په نورو شعرونو كي هم د سوات او سواتيانو يادونه ډېره سوې ده او د دوى د ژوندانه ظاهري او معنوي څنګونه يې روښانه كړي او په كره كتنه ورته ځير سوى دى چي د نمونې په توګه دلته يو څو دغه انتقادي ويناوي راوړل سوي دي :

يوسفزيه ډېر چركـــــــــين لري ځايونه
آلوده، ګنده، بدبوى لـــــــكه سرايونه
څـــو سړي هومره يې سپي په هره خونه
په انګړ كي يې چرګان ګرزي سل ګونه
درسته خونه يې نيولې په كـــــــندوانو
په ګنده روزګار بتر دي تر هـــــــندوانو

(سواتنامه ۳۰ _ ۳٤)

د ډهلي دربار خو له پښتنو سره ددوى په غرنۍ سيمه كي د لښكري ډغرو خوند څكلى و نو ځكه يې په پيسو خرڅولو او لمسون په دوى كي بېلتون اچاوه، خوشحال خان په يوه قصيده كي په (۱۰۸٦ق) كال داسي ويلي و :

خزانې د هندوستان دي راخپرې شوې
سره مهران دي ننوزي په كـــــــوهسار

(كليات ۵۹۳)

يوسفزي خو تر ډېره وخته د پاچهانو له دې سياسي لمسون او بډو څخه آزاد وو او له اكبر پاچا او جهانګير سره يې ډېري خپړي لګولي وې، خو وروسته د مقامي سازشكارو او بډو خوړونكو بډايانو په وسيله دوى هم د شاهنشاهانو دغه جوغ ته غاړه ټيټه كړې وه خوشحال وايي :

د مغل په طباغ ډېر يوسف مندښ دي
لكه وړي مچ ډېرېږدي درنګ په درنګ
كه كعــــبه كه يې قبله ده خو ټنګه ده
په پيسه پسي به دومي تر فرســـنګ
كه پيسه د ملـــنګۍ په لباس مومي
مصلې به د ګــــــــيدړ كا پسي لنګ

(كليات ۱۰۳۵ قندهار)

په سواتنامه كي هم دغه خصلت ته داسي ګوته نيسي :

وېش قســـمت چي د وفا د مـــروت و
يوســـــفزيه په دا كار كي بې قسمت و

پول پیسه پکي د واړو دین مذهب ده
اندېشه يې خـــو د سیم او د ذهب ده
که یوه پیسه په څه انواع دوه کـــېږي
هم هغه کا هـــــیخ په بله نه پوهېږي

(سواتنامه ۱۳۲ _ ۱٤۰ بیت)

د سواتنامې تر (۱۱۱) وروسته بیتونه هم پر یوسفزو دغسي شاعرانه انتقادونه دي چي دغه یوازي په همدغه ټبر پوري اړه نه لري بلکي د اکثرو پښتنو د اقتصادي او جغرافي حالت نتیجه ده چي پخپله خوشحال او خټك هم کله په دغي بلا اخته وو.

دا خو د پښتنو د ژوندانه د چاپېر یعني د طبیعي جغرافي موقعیت او د اقتصادي تولیدي احوال هغه را پیدا کېدونکې او را زېږېدلې اوضاع ده چي چاپېر يې غرنی و او ډېروکرنو او تولیدي یا صنعتي ودي ته مساعد نه و، د دوی ژوند او اقتصاد له کوچیتوبه زراعتي اوکلي والي سکون ته لا بشپړ نه و او اوښتی نو ځکه "که یوه پیسه په څه انواع دوه کېده" دوی له هغې چاري څخه مخ نه ګرزاوه، دا يې د ملك او مشر حال و :

ملـــــــکي يې په کـــــــــرم نه ده په توره
په دا دواړه تـــــــوکه مـــور ده باندي بوره
سود حاصل يې یا د بډو یا د خـواست وي
په هرکلي په هر چم باندي يې زغاست وي

(سواتنامه ۱۸۳ _ ۱۸۵ بیت)

خوشحال خان اوه میاشتي په سوات کي د خلکو په راپاخونه او سره راټولنه لګیا و هلته هم شاهي دربار لاس درلوده او ملکان او پیران يې سره را استول. میان نور د یوسفزیو پیر چي د لښکرو کولو په چارو کي خنډ اچاوه، د خوشحال خان په تلقین يې ظاهراً د شاهي دربار له سیلې څخه لاس واخیست په پټه به د پردو په لمسون په خپلو تېرایستنو او غولولو لګیا و :

و مغلو و ته کښل چي شیخ میان نورکړه
ما وې نور دا هسي مه کړه ده منظورکړه
)خو( د لښـــکرو په وتلو اولس ســاز شي
بیا د ده له فــعله بل فعـــل آغــــــاز شي

(سواتنامه ۳۲۵ _ ۳٤۷ بیت)

افضل خان لیکي چي د دې سفر نتیجه د یوسفزو او مندنو جنګرېز او د پني پیر او سیکرۍ تر منځ یوه جرګه وه چي وروسته يې شهبازګړۍ څنګ ته د شاهي لښکرو سره جنګ ونښت او دا د خوشحال د اوو میاشتو تلقین و چي پخپله هم (۱۵۲) وايي :

لنـــــــــــګرکوټ مغلو سازکړ
زه په ننګه د افــــــــــــغان سوم
کــــه یوسف وکـــــــــه مندڼ و
زه د دواړو نګـــــــــــهبان سوم
د مغــــــــــــــلو مي بلا ســــــوه
غر په غر په کوهســــــتان سوم

ســــــــــمه سوات په یوسفزیه
د هر چا کره مهــــــــــمان سوم
په ټولـــــــه د یوســــــــــفزئی
مظـــــفر په هر مــــــیدان سوم
بیا مي سوات سمي ته شاه کړه
پخــپل غره په خپل مکان سوم

(کلیات ٥٤٩ قندهار)

خوشحال خان خو یوسفزي او سواتیان د ځان مله کړل او میان نور هم توبه ګار سو چي د مغلو سیه به نه کوي او په سمه کي هم پښتانه پر څنګ ورسره ودرېدل خو د دې ګردو ځغاستو او زیار په نتیجه کي :

تیراه مي ولیده راغلم تر ســـــــواته
پښتون مي ولیده دا لوی لوی ذاته
عقل همت مي د چــــــــا ونه لــــــید
په بیارته راغلم ناست یم ملا ماته

(کلیات ٧٢٧)

ځیني ملي غورځنګونه داسي هم وي چي پهلوانان يې د میوو خوندونه څکي او ظاهراً بریالي نه ښکاري، خو وروسته دا څرګنده سي چي هغه غورځنګ د یوه بل پاځون ادامه وي، او وروسته هم بل غورځنګ داسي راتلونکی وي چي د هغه مقصد پوره کاندي او د بري ستوری يې بشپړ وځلیږي.

د خوشحال خان دغه حرکت خو د پښتون د اجتماعي ژوندانه د مراحلو یو پوړ و، چي د پیر روښان د نهضت پایځوړ او د میرویس هوتك د قندهار د آزادیخواهانو مقدمه الجیش ګڼل سي، نو ځکه زه دغه ملي غورځنګ نامراده نه بولم او د افضل خان هغو لیکنو ته حواله ورکوم چي د میرویس خان معاصر و، او د ده ملي غورځنګ ته يې په خورا ډېره هیله او امید کتل، چي په پای کي يې وایي :

(میرویس) "تر دا تاریخ چي سن زر سل څلیرویشت دی په قندهار کي ناست خپل حکومت او سرداري کا، توفیق يې رفیق شه، ښه پښتون دی" [١٥٣].

د خوشحال خان او یوسفزو تر منځ خو د ګیلې ګوزارې او روغي جګړې ډېري دي، پر سوات باندي ډېر انتقادي شعرونه هم لري، خو په دغه بیت کي د ده او سوات قصه تمامیږي، چي وایي :

یوســــــفزیه که وهـــــــــــلې نه ده توره
په هاهو شرکت لري بلا يې دوره [١٥٤]

(سواتنامه ١٠٤ بیت)

لمن لیکونه :

١. د ریګوید انګرېزي ترجمه، ١/٥٢٢ سندره _ ٦ _ ١٠ د سوات د کلمې یو حدسي او تخمیني تحلیل د دې سریزي په لسمه برخه کي ولولئ.
٢. د پاڼي ني کتاب : اشتادهیایي )اته ویناوي( پنجم ٢، ٧٧.
٣. V.S. Agravala India as Known to Panini. Lucknow ٤٢ . ١٩٥٣ .

٤. Nundo Lal: The Geographical Dictionary of Ancient India. ۱۹۹. Delhi ۱۹۷۱.
۵. د فاهیان سفرنامه ۱۵ د ګیلس انګرېزي ترجمه. د کمبرج چاپ ۱۹۲۳م.
٦. سي ـ یو ـ کي پښتو ترجمه ٦٦ د کابل چاپ ۱۳۵۷ش.
۷. وګورئ د سي ـ یو ـ کې پښتو ترجمه، دریم کتاب ۱۸۵.
۸. Cunningham: Ancient Geography of India. ۸۳ Condon ۱۸۷۱.
۹. سراولف کیرو : پټهان ۱۲۲ د لندن طبع ۱۹۵۸م.
۱۰. تاریخ یمیني ۱۵۹ د لاهور چاپ ۱۳۰۰ ق.
۱۱. وګورئ : افغانستان بعد از اسلام ۱/۷۱ تر ۱۰٤، ۱۰۷۱ تر ۱۰۸۲ د کابل چاپ ۱۳۵۷ ش.
۱۲. کتاب ا لهند ۲/۱۸. انګلیسي ترجمه د لاهور چاپ ۱۹٦۲م.
۱۳. افغانستان بعد از اسلام ۱/...
۱٤. البلاذري : فتوح البلدان ۵۳۱.
۱۵. الله بخش یوسفي : یوسفزیي افغان ۲۵۹ د کراچي چاپ ۱۹٦۰م.
۱٦. دوغلات : د تاریخ رشیدي انګلیسي ترجمه د لندن چاپ ۳۸۵ د مینارسکي حواشي پر حدودالعالم د کابل چاپ ۲۱٦.
۱۷. سي ـ یو ـ کې د بیل ترجمه ۲ ـ ۲۹٦.
۱۸. مینارسکي : د حدودالعالم حواشي ۲۱۷.
۱۹. حدودالعالم ٤٦ د تهران چاپ ۱۹۳۲م.
۲۰. حدود ۷۳.
۲۱. د هند بشپړ تاریخ ۵ ـ ۷٤۰ )انګلیسي( د ډهلي چاپ ۱۹۷۰م.
۲۲. وګورئ : تذکره الابرار والاشرار د پېښور چاپ ۱۳۰۸ق او تاریخ مختصر افغانستان ۲/۲۲ د کابل چاپ ۱۳٤٦ش.
۲۳. په تاریخ نامه هرات )طبع کلکته ۱۹٤۳م( کي ۳٦ بلاد افغانستان نوم راغلی دی اوغانستان.
۲٤. تاریخ فیروزخان شاهي )۸۲/۳٤( د کلکتې چاپ ۱۸٦۲م.
۲۵. د تفصیل له پاره وګورئ : د ضیاء برني تاریخ فېروزشاهي، د احمد یادګار تاریخ شاهي، د یحیی سرهندي تاریخ مبارکشاهي، د محمدکبیر افسانه شاهان، د عصامي فتوح السلاطین او د شېرشاه سوري تاریخونه.
۲٦. وګورئ : د عبدالرزاق سمرقندي مطلع سعدین او د سیفي تاریخنامه هرات او د هند د لودیانو او سوریانو تاریخونه.
۲۷. راورټي : د پښتو ګرامر سریزه د خطي تذکره الملوك په حواله.
۲۸. راورټي : د خطي تذکره الملوك په حواله.
۲۹. خرشواني Kharashavani د افغان د سړه بن قبایلو څخه و، چي مؤرخانو خرشبون لیکلی دی او کند ـ زمند ـ کاسی درې قرعي قبیلې دي )مخزن افغاني( دغه نوم پښتو دی : ښه + رشه + وان یعني د ښه خوی خاوند = نېکوخوی.
۳۰. مطلع سعدین ۳۵٦/۲ د لاهور چاپ.
۳۱. تاریخنامه هرات ۳۰۵ ـ ۲۰۹ ـ ۲۲۲ ـ ۳۰۳.
۳۲. اخوند درویزه : تذکره الابرار والاشرار ۱۲٤. افضل خان خټك : تاریخ مرصع ۲۳۱. محمد هوتك : پټه خزانه ۲۱.

۳۳. تاریخ مرصع ۲۳۳.
۳٤. اخوند درویزه دغه نوم میرزاقلي بېګ کښلی دی )ص ۱۲٦ تذکره( خو د نورو مؤرخانو په قول الغ بېګ صحیح دی )مړ ۹۰۷ق غزني(.
۳۵. د دغو مهاجرتونو له پاره وګورئ : تاریخ مرصع ۲۳۱. تذکره الابرار ۱۲٤. حیات افغاني. تواریخ حافظ رحمت خاني او مخزن او نور.
۳٦. تواریخ حافظ رحمت خاني ۱٤۵ د پېښور چاپ ۱۹۷۱م.
۳۷. هستنګر او ګوپالداس : تاریخ پشاور ٤۰٦ _ ٤۳۳ د لاهور چاپ ۱۸۷٤م. حبیبي : د پښتو ادبیاتو تاریخ ۲/۲۳۵ د کابل چاپ.
۳۸. تواریخ حافظ رحمت خاني ۱٤۵.
۳۹. تذکره الابرار والاشرار ۱٤٦.
٤۰. تواریخ ۱٤٦.
٤۱. بابرنامه ۱۳۷ د بمبیي چاپ ۱۳۰۸ق.
٤۲. تواریخ رحمت خاني ۳۲.
٤۳. بابرنامه ۱۳۹.
٤٤. بابرنامه ۱۳۸.
٤۵. بابرنامه ۹۲.
٤٦. تواریخ رحمت خاني ۹۷.
٤۷. بابرنامه ۲۳۹، ابوالفضل او اخوند درویزه هم د دغې پښتنې نوم بي بي مبارکه کښلی دی )د اولف کیرو پټانان ۱۵۹ او د یوسفي یوسفزایي افغان ۳۱۷( د دې پښتنې ورور میر جمال د بابر سره د هند په نیولو کې ملګری و، دی او خوریې د اکبر په زمانه کې په هندوستان کې مړه دي (د بابرنامې انګرېزي ترجمه ۲/۸۷).
٤۸. همایون نامه ۱۰ د ډهلي چاپ ۱۹۷۲م.
٤۹. تواریخ رحمت خاني ۱۰۱.
۵۰. دغه قصه ما د ستانې له سید جبارشاه څخه اورېدلې وه، چې د سوات د امیر سیداکبر شاه له ټبره څخه یو دروند او خبرلوڅ پښتون و، څه موده یې د سوات امارت هم کړی و او د ۱۹۵٦م په نومبر په ستانه کې وفات سو.
۵۱. سواتنامه یوویشتم بیت. داسي ښکاري چې د نونسم قرن تر پایه لا دغه "وېشونه" په سوات کې وو، عنوان الدین کاکاخېل په ۱۸ مارچ ۱۸۸۲م د سوات په احوال کې وایي : سواد زمکه ده زرخېزه _ خو مخلوق یې درویزه دوی مدام کوي "وېشونه _ یو د بل سره جنګونه _ ځکه ښه نه ابادېږي ... )د پښتونخوا د شعر هاروبهار ۳۲(.
۵۲. عباس سرواني : شېرشاهي تاریخ ۷ پښتو ترجمه د کابل چاپ ۱۳۵٤ ش.
۵۳. همدغه کتاب ۲۷٤.
۵٤. نعمت الله هروي : مخزن افغاني ۱/۱۳۱۳ د ډهاکې طبع ۱۹٦۰م.
۵۵. همدغه کتاب ۲/۵۷۸.
۵٦. یوسفي : یوسفزئي افغان ٦۵۲.
۵۷. پټانز ۱۹٦.

۵۸. بایزید روښان : صراط التوحید ٤٧.
۵۹. خزن الاسلام به ښکاره خلکو لوست او لکه د سواتنامې په ۳۰۸ بیت کي چي وایي خلکو د اسماني صحیفو په څېرګانه او دا جلي و، اما د شیخ ملي دفتر خلکو پټ کړی و او خفي و.
٦۰. عبدالحمید لاهوري : پادشاه نامه ۲/١٤ د کلکتې چاپ ۱۸۷۲م. محمدصالح کنبو : عمل صالح ۲/۲٦ د کلکتې چاپ ۱۹۱۲م.
٦١. وګورئ د سواتنامې (۳۵۱ _ ۳٦۰ _ ۳٦١ _ ۳٦٦ _ ۳۷١ _ ۳۷۷) بیتونه.
٦۲. یوسفي : یوسفزئي افغان ۲۹۵.
٦۳. دغه کتاب ۲۹۸.
٦٤. شیخ فرید بهکري : ذخیره الخواتین ١/۱۸٤ د کراچي چاپ ۱۹٦١م.
٦۵. ابوالفضل علامي : اکبرنامه ۲/۵۱۹ د کلکتې چاپ ۱۸۸٦م.
٦٦. سراولف کیرو : پټانان ۲۱۸.
٦۷. نظام الدین احمد هروي : طبقات اکبري ۳۹/۲ د کلکتې چاپ ۱۹۳۱م. خافي خان : منتخب اللباب ١/۱۹۰ د کلکتې چاپ ۱۸۹٦.
٦۸. یوسفي : یوسفزئي افغان ۳۰۰.
٦۹. پادشاه نامه ۳۱٦\١.
۷۰. دغه نوم د هند مؤرخانو په هندي ډول بهاکو لیکلی دی. مګر یوسفزي او د بونیر خلك یې باکو بولي، چي د تاریخ مرصع په خطي نسخو کي هم بهاګو دی. په قندهاریو پښتنو کي هم دا نوم )بګي _ بګو( و او اد احمدشاه ابدالي د لوی وزیر شاه ولي خان اصلي نوم بګي خان و. دا نومونه د بګ )خدا، عظیم( لرغوني نوم ته منسوب دي. چي د کوشانیانو په عصر کي د خدای یا پاچا نوم و یا یې معنا عظیم او ستر و او په سنسکریت او پهلوي او باختري ژبو کي ډېره مروجه کلمه وه )د تفصیل له پاره وګورئ زما کتاب مادر زبان دری ص ٤۳، ۱۰۷( د کابل چاپ ۱۳٤۲ش.
۷١. دا نوم هم هندوستاني مؤرخانو مسخ کړی او اخوند سالك یې څني جوړ کړی دی. مګر په پښتو معاصرو او وروستنیو کتابو کي څالاك = چالاك (پښتو سلوك الغزات د کابل خطي نسخه).
۷۲. حیات خان : حیات افغاني ۲٤٦ د لاهور چاپ ۱۸٦۷م.
۷۳. یوسفي : یوسفزئي افغان ۳۰٦ _ ۳۹۹.
۷٤. دغه د داراشکوه فرمان په ۲۲ ذیقعده ۱۰٦۸ ق کښل سوی او د لوړ کتاب په ۳۱۵ مخو کي عکسي چاپ سوی دی.
۷۵. افضل خان خټك : تاریخ مرصع ۲۲٤.
۷٦. دغه کتاب ۲٦۹ _ ۲۷۰.
۷۷. دغه کتاب ۲۷۹ _ ۲۸۲.
۷۸. دغه کتاب ۲۷۳ _ ۲۸۹.
۷۹. دغه کتاب ۲۷۸.
۸۰. منشي محمدکاظم : عالمګیرنامه ۲/۱۰٤۵ د کلکتې چاپ ۱۸٦۸م. منتخب اللباب ۲/۱۳۰.
۸١. یوسفزئي افغان ۳۱۳.
۸۲. افضل خان : تاریخ مرصع ۲۹١.
۸۳. شېرمحمد خان ګنډه پور : خورشید جهان ۱۹٦ د لاهور چاپ ۱۸۹٤م.

٨٤. خزينه الاصفياء ٧٩/٤٧. دكنزالدقايق توضيح د ١٩٢ بيت په حاشيه کي ولولئ.
٨٥. احمدشاه رضواني : تحفه الاولياء ٣٤ د لاهور مخ ١٣٢١ق.
٨٦. درويزه : تذکره الابرار ١٨٥ _ ١٨٨.
٨٧. افضل خان : تاريخ مرصع ٥٩٢.
٨٨. تذكره ١٣٢ تحفه ٢/...
٨٩. محمدكاظم : عالمگيرنامه ٢/١٠٤١.
٩٠. تحفه ٣١.
٩١. تاريخ مرصع ٥٩٣.
٩٢. دغه کتاب ٥٦٠ _ ٥٩٢.
٩٣. د تفصيل له پاره وگورئ : پښتانه شعراء ١/٧٧ دکابل چاپ ١٣٢٠ش.
٩٤. تحفه ٣٢.
٩٥. فيرير : د افغانانو تاريخ ٦٧ د لندن چاپ ١٨٥٨م.
٩٦. د لوی احمدشاه بابا ويناوي ٢٩٢ دکابل چاپ ١٣١٩ش.
٩٧. دغه کتاب ٣٢١.
٩٨. خورشيد جهان ١٩٦.
٩٩. ايل فنستن سلطنت کابل د لندن چاپ ١٨٣٩م د قاضي عطاء الله د پښتنو تاريخ په حواله ١/١٠٤ د پېښور چاپ ١٩٤٧م.
١٠٠. عزيز الدين وكيلي : دره الزمان دکابل چاپ ٣٣٧ش.
١٠١. امام الدين حسيني : تاريخ حسيني ١٧٦ دکابل خطي نسخه.
١٠٢. دغه کتاب ٢٢٨ _ ٣٢٥ _ ٣٨٠.
١٠٣. دغه کتاب ٣٧٠ _ ٣٩٠.
١٠٤. امام الدين حسيني : تاريخ حسيني ١٧٦ دکابل خطي نسخه.
١٠٥. وكيلي : دره الزمان ٨٧ _ ٣٠١.
١٠٦. دغه لنډۍ ما پخپله د سيد جبارشاه له خولې په سنه ١٩٥١م په پېښورکي اورېدلې وه )حبيبي(.
١٠٧. پرماتماشرن : فارسي اخبارات و مراسلات د ډهلي چاپ ١٩٦٦. داکتاب د هغو راپورونو مجموعه ده چي د انګرېزانو د شرقي هند دکمپنۍ جاسوسانو په د ١٧٧٦ تر ١٨٠٣ م پوري د گورنر جنرال دفتر ته ورکول او دغه راپور نمبر ٢١٤ د کتاب په ٤٨٤ مخ کي مفصلاً درج دی او همدغه کتاب د انګرېزي استعمار تشويش د افغانستان له خوا او د شاه زمان له لښکرکشۍ څخه ښکاره کوي.
١٠٨. غلام رسول مهر : سيداحمد شهيد ٤٣٠ د لاهور چاپ.
١٠٩. عبدالغفور قاسمي : تاريخ سوات د پېښور چاپ ١٣٥٦ ق. نصرالله نصر : اخوند صاحب سوات د پېښور چاپ ١٩٥٠ م. ولي محمد سواتي : د اخوند صاحب پښتو منظوم مناقب (خطي). هيوگس : د سوات اخوند د لندن چاپ ١٨٩٥م. محمداسماعيل طوروي : صاحب سوات د پېښور چاپ ١٩٥٣م.
١١٠. لومسدن : د سوات راپورټ. دکلکتې چاپ ١٩٠٠ م. يوسفي : يوسفزئي افغان ٣٩٢.
١١١. جيمس : د پېښور حکمران د لندن چاپ ١٨٩٨م. يوسفي : يوسفزئي افغان ٣٩٣.
١١٢. جيمزډار مستتر : د پښتونخوا د شعر هاروبهار تشريحات ٢٢ د پاريس چاپ ١٨٨٨م.
١١٣. دغه کتاب ١٤ دا چاربيته اوړده ده دلته يي تش دوه بنده وکښل سول. چارچوبۍ : غسل خانه او د اوداسه

ځای ته وايي.
۱۱٤. ګړ : دلته د مقر او استوګنې د ځای معنی لري.
۱۱۵. شادومخي : مراد پرنګيان دي، چې مخونه يې د بيزو په څېر سره دي.
۱۱٦. لوړ : سوټې، د وهلو غټ لرګی.
۱۱۷. لګړ : يو ښکاري مرغه دی، لکه شاهين.
۱۱۸. د پښتونخوا د شعر هاروبهار ١٦.
۱۱۹. دغه کتاب ١٩.
۱۲۰. يوسفزئي افغان ٤٣٠.
۱۲۱. دغه کتاب ٤٣١.
۱۲۲. دغه کتاب ٤٣٢.
۱۲۳. حجه البيضاء د بمبيي طبع ١٣١١ق.
۱۲٤. شمس النهار، د کابل چاپ ۷ شماره، لومړی کال ١٢٩٠ق. د اخوند صاحب د ١٣ شوال ١٢٩٠ مکتوب د امير شېرعلي خان په نامه.
۱۲۵. عبدالحی حبيبي : د افغانستان پېښليك ٢٠١ د کابل چاپ ١٣٥٢ش.
۱۲٦. يوسفزئي ٤٣٢.
۱۲۷. يوسفزئي افغان ٤٤٠.
۱۲۸. دغه کتاب ٤٤٢.
۱۲۹. دغه کتاب ٤٥٨.
۱۳۰. دغه کتاب ٤٨٥.
۱۳۱. عبدالرؤف بېنوا : پښتونستان ٤٣٣ د کابل چاپ ١٣٣٠ش.
۱۳۲. سمويل بيل : د سي ــ يو ــ کې ترجمه ١٨٥ د کابل چاپ ١٣٥٧ ش. بيل په حاشيه کې وايي : ځکه چې سوات د يوه بڼ په څېر دی نو اديبانه نومېده.
۱۳۳. دکتور معين : د برهان قاطع حاشيه ٩٣. ادبارتوليه او نيبرګ په حواله د تهران چاپ ١٣٤٢ش.
۱۳٤. د سي ــ يو ــ کې پښتو ترجمه ١/١٩٣.
۱۳۵. البيروني : کتاب ا لهند ٢/٢٤٥ د رزخاو انګرېزي ترجمه د لاهور چاپ ١٩٦٢م.
۱۳٦. سي ــ يو ــ کې ١/١٨٨.
۱۳۷. ستين کونو : خروشتهي ډبرليکونه ٢/٦٥ انګليسي د اکسفورډ چاپ ١٩٢٩م.
۱۳۸. دغه کتاب : مختلف مخونه، حبيبي : تاريخ خط و نوشته هاى کهن افغانستان ٢٩ ــ ٤٩ طبع کابل ١٣٥٠ش.
۱۳۹. پروفيسر ټوچي : د کراچي د ډان ورځپاڼه د دسمبر شپږمه ١٩٥٨م.
۱٤۰. تاريخ مرصع ٢٧٨.
۱٤۱. دغه کتاب ٢٦٥.
۱٤۲. دوست محمد کامل : خوشحال خان خټك ١٧ د پېښور چاپ ١٩٥١م.
۱٤۳. تاريخ مرصع ٥٠٢.
۱٤٤. دغه ٢٦٥.
۱٤۵. دغه ٢٦٨.

۱٤٦. دغه ۲۷۰.
۱٤۷. دغه ۲٦۸.
۱٤۸. همدغه.
۱٤۹. همدغه ۲۷۸.
۱٥۰. همدغه ۲۹۹.
۱٥۱. کامل : خوشحال خان ختټ ۱۸۳.
۱٥۲. تاريخ مرصع ۳٤٤.
۱٥۳. تاريخ مرصع ٤۰۲ د افضل خان ختټ د تاريخ مرصع هغه فصل وګورئ چي د ميرويس غلجي تر عنوان لاندي يې کښلی دی )ص ۳۹۸.
۱٥٤. سواتنامه د خوشحال خان، ۱۳٥۸ش _ کابل، ۱ _ ۷۷ مخونه.